د کتاب ټول حقوق د شاعر په حق کي محفوظ دي

---

د کتاب پېژندنه
کتاب ---------------------- دلمرپل
شاعر ------------------------ عارف تبسّم
ټائټل ------------------------ حفصه تمثیل
کمپوزنګ ------------------ عارف تبسّم
کمپوزنګ مرسته ---------- بارکوال میاخېل
لمرکمپوزکورکوټه
شمېر ---------------------- ۵۰۰ ټوکه
چاپ کال ------------------- ۲۰۰۶ء
د چاپ ځای --------------- قلات پرېس کوټه
بیه ----------------------- ۱۵۰روپۍ
دموندلودرک
۱- صحاف نشراتي موسسه کاسي روډ کوټه
۲- دانش خپرندویه ټولنه قصه خوانۍ پېښور
۳- خوشحال بک لېنډ تحصیل روډ بورے لورالائي

خورؤنکي
پښتو ادبي ملګري ،بورے لورا لا ئي

سهيلي پښتونخوا

# ترون

دغه تيارو په نوم
چي مادرنا په لټون ګرځوي

# لړۍ

## شمېر لیک مخ



## غزلونه

## نظمونه

## غزلونه

## نظمونه



## غزلونه

# نظمونه

## غزلونه

# د عارف تبسم ـ
# رڼا رڼا نغمه تکلم

د ښکلا د تخلیق په اړوند، شاعري، موسیقي، رقص، مجسمه سازي او تعمیر په فنون لطیفه کښې خصوصي ځای لري. پېژندګلوي ئې دا ده چې هر هغه فن چې خلګو ته جمالیاتي حظ، حسیاتي مسرت او روحاني خوشحالي ورکوي، هغه له فنون لطیفه څخه دے خو شرط دا دے چې په مادي ذرائع او وسائل به ئې انحصار، نه صرف لږ تر لږ وي بلکې د مادي ضرورت او منفعت سره به ئې تړون هم د نشت هومره وي لکه هېګل چې وئیلي دي چې "د فنون لطیفه معیار، له مادي وسیلو څخه په اجتناب او بېلتون منحصر دے".

د دغه تعریف په رڼا کښې به دا وېنا غلطه نه وي چې د نزاکت، لطافت او نفاست په ذکر شوی امتیازي او اعلیٰ معیار باندې ولې چې شاعري تر ټولو زیاته پوره خېژي ځکه ئې په فنون لطیفه کښې درجه او مقام هم تر ټولو لوړ او څرګند دے.

شاعري یو تخلیقي عمل دے چې د ځنګلي بوټي په شان پخپله را شین شي. بس یو کېفیت راشي او د الهام غوندې بیان شي. حتیٰ چې د تخلیق تر تکمیل پورې شاعر په دې هم نه پوهېږي چې هغه څه لیکي او څنګه ئې لیکي. یو غیر محسوس قوت د هغه په ذهن او حواسو باندې خور او حاوي وي او هغه یوه

نامعلومه دنیا، د هغې کېفیات او عوارض په داسې روانۍ لیکي لکه اسماني فرشته چې هغه ته ډکټېشن (DICTATION) ورکوي. غالب هم دغه خبره، په ډېره ښائسته پېرایه کښې کړې ده :

آتے ہیں غیب سے یہ مضامیں خیال میں
غالب صریرِ خامہ، نوائے سروش ہے

په اردو کښې جدیده شاعري د ۱۹٦۰ء شاوخوا د ترقي پسند تحریك په ردِعمل کښې د حلقۀ ارباب ذوق له پلېټ فارم (PLATFORM) څخه پیئل شوه، سوب ئې دا وُ چې د "ادب برائې ادب" (زما په خیال ادب برائې فن) نظریه د "ادب برائې زندګي" په مفکوره باندې د بدلېدو پس د یکسانیت ښکار شوې وه، ادبیات د تخلیقي علویت او فکري رفعت له اوچته معیاره څخه د وګړو د نس او نفس غوندې په عمومي موضوعاتو باندې د نعرې، پروپاګنډه او اشتهار رنګه و لوېدلې سطحې ته را کوز شوې وو. تخلیق یو مخ د خارجي فکر نمائندګي کوله، داخل ئې یکسر نظرانداز کړے وُ. الهامي کېفیت ئې د نشت برابر او د منصوبه بندۍ زور ئې بېخي جوت وُ. حالانکې تخلیق د هغې قدرتي چشمې په مثال دے چې پخپله را و بهیږي. د ډېم (DAM) غوندې نه چې د منصوبې تحت جوړیږي. په داسې حالاتو کښې د خارجیت د زبردست یرغل په ضد تخلیقي ذهنونو بیرته داخلیت ته مراجعت ضروري وباله البت په دې تحریك کښې تر ټولو ګټور اړخ دا را مخته شو چې د روایت ټوله ښکلا او فن، د ترقي پسندۍ ټول مقصدیت او افادیت ئې هم د تخلیقي عمل برخه وګرځاوه. هغه ټول نظریات، رجحانات، اسالیب، هېئتونه او اصناف ئې د تخلیق

د تازګۍ، قوت تاثیر او ارزښت دپاره خپل کړل چې یوه ژبه د عالمي سطحی د غوښتنو او معیار سره برابرولے شي. د اردو شعر و ادب دغه همه ګیر او همه جهت موثر تحریك، پښتو ادبیات هم تر خپلی اغېزی لاندی راوستل او په هره سیمه کښې داسی ځیرك او باصلاحیت لیکونکی را پېدا شول چې هغوي و خپل اظهار ته د نوی لب او لهجې ورکولو دپاره د تخلیقي او تنقیدي زیار، ذمه دارانه کردار خپل کړو.

په شاعرۍ کښې د نوۀ هڅو او جدیدو رجحاناتو د خپلولو او خورولو په اړه "د لورالائي مکتب" په ټوله پښتونخوا کښې جلا او منلے ځاې لري. د خپل سرخېل پروفېسر رب نواز مائل په مشرۍ کښې د "بوري" د تاریخي او افتخاري خاوری سره تړون لرونکو شاعرانو، نه یواځی پخپله د اظهار نوی اسالیب پېدا کړل بلکې د جنوبي پښتونخوا ځخه دباندی ئې هم اغېزه ښکاره او اثرات مرتب شول. نن دا په دعویٰ سره ویل کېدے شي چې "لورالائیات" د یوې شعري، ادبي او تنقیدي اصطلاح حېثیت تر لاسه کړے دے او د لورالائي د مکتب جدیدی شاعرۍ د شلمی پېړۍ تر ټولو د موثر مکتب او منظم تحریك ځاې موندلے دے. په دې خاوره کښې د نوو رجحاناتو په اړه د بحرونو، هېئتونو، قافیې ردیفونو او لفظونو د علامتي، تمثالي، استعاراتي او د نوی معنوي استعمال د کامیابو تجربو سره سره په مختلفو ژانرونو کښې په متنوع موضوعاتو باندی پرله پسې دومره اهم تخلیقي کار او زیار مخی ته راغے چې هیڅ ادبي تاریخ او شعري تذکره ئې نظرانداز کولے نه شي. خصوصاً د لورالائي شاعرانو د خپل خپل اسلوب په حواله

انفـرادي تـشخص بيـا مونـد. د "اسـلوب" د امتيـازی تخـصص پـه حقلـه د پروفېـسر شـميم حنفـي دا وينـا د قـاطِع بُرهـان پـه مـصداق ده چـی " تجـربې او تـصورات مـشترك كېـدلې شـي خـو اسـلوب هغـه صـفت دے چـی خالـصتاً انفـرادي او شخـصي ملكيـت بلـل كيـږی، د دې اړخ د جـاج او جـائزې پـه پرتـه د يـو ادب پـارې صـحيح مطالعـه امكـان نـه لـري" خـو د اسـلوب (STYLE) او اسـلوبيات (STYLISTICS) پـه اړه پـه پښتـو كښـی دومـره لـوړ تنقيـد او علمـي پرتلنـه تـر هغـه وختـه نـاممكن ده چـی ادبی تجزيه د سائنس تر مرتبې پوری ځان نه ورسوي.

د لـورالائـي د جديـد شـعري مكتـب سـره ناشـلېدلې تـړون لرونكـی شـاعران لكـه محتـرم رب نـواز مائـل، سـيد خېرمحمـد عـارف، سـرور سـودائي، عمرگـل عـسكر، اروانښـاد وزيرمحمـد سـوالي، ځـوانيمرگ سـيد محمـدگل شـاه خوسـتي او راقـم الحـروف او پـه مونـږ پـسې پروفېـسر محموداېـاز، افـضل شـوق او سـهېل جعفـر او ورپـسې راتلـونكی منـور ځلميـان لكـه عبـدالغني مبـارز، رازق فهـيم، عـارف تبـسم، علـي كمېـل قزلبـاش او قـاري جمـال الـدين مـسافر داسـی نومونـه دي چـی لـه ادبـي دُنيـا سـره پـه زړهٔ پـوری تعـارف لـري او پـه خپـل خپـل ځـاې د ادب پـه ناقـدينو بانـدی د سـنجيده لوسـتنی او سـتاينی حـق لـري. د دغـو ټولـو شـاعرانو شخـصي تخصيـصات او تخليقـي مميـزات را مختـه كـول يـو باقاعـده تنقيـدي موضـوع دے چـی پـه دې ليكنـه كښـی گنجـائش نـه لـري، ولـی چـی دا وخـت د گـران عـارف تبـسم د راتلـونكی مجمـوعې پـه بابلـه تفهـيم او تحـسين يـا مطالعه او تجزيه زما اصل موخه ده.

گـران عـارف تبـسم يـو ذهـين، متـين، سـنجيده، فهميـده، ديـده

ور او بـاهنر ځلمـے دے، هغــه د لــورالائــي د ويــاړمنی تــپې د ژونــد او ژواك مجــسم تــصوير او مكمــل تفــسير دے. هغــه يــواځی خوبــصورت او خــوب ســيرت، خــوش خيــال او خــوش بيــان پښتــو شــاعر نــه دے. د پښتــو او اردو دواړو ژبــو ډېــر ښــه، غښتلے، باشــعور، مترقــي صــائب الــراې او صــاحب الــراې نثرنګــار هــم دے. د هغــه مــضامين د هغــه د ادبـي قـد و قامـت او فكـري شخـصيت پـه تـشكيل كښـی اهـم معنـوي رول لـري خـو دلتـه ئـې اجمـالي څېړنـه هـم ولـی چـی د طوالـت باعـث ګرځی ځكه زهٔ خپل اصل موضوع ته پاملرنه را ګرځوم.

د ګـران عـارف تبـسم دا اولنـۍ شـعري ټولګـه "د لمـر پـل" مـا لـه سـره تـر پايـه لفـظ بـه لفـظ لوسـتی ده. پـه دې كښـی د تـورو د بـاران وروسـته د كاغـذ پـه اسـمان بانـدی د خيـالونو سـرې او شـنې پـه شـعري فــضا كښــی د تخليــق تــازه، شــوخ او نــوی رنګونــه پاشــلی دي چــی د ادبي كائنات حسن ئې نور هم زيات كړے دے.

عــارف تبــسم پــه غــزل او نظــم دواړو كښــی د يــوه ســپېڅلی شــاعر پــه حېــث ګــڼ داســی مــضامين قلمبنــد كــړی او موضــوعات څېــړلی دي چــی ادب مَيَنــان او د فكــر و فــن نقــادان ځــان تــه ارومــرو متوجــه كــوي. پــه دې اړه هــر هغــه څــه ليكــل خــو امكــان نــه لــري كــوم چــی مــا محــسوس كــړی دي البــت هغــه موضــوعات چــی د هغــه د فكــري دائــرې پــه جوړښــت كښــی مركــزي اهميــت لــري، دلتــه ذكــر كــول او د هغــه د اظهــار د انــداز پــه حقلــه څــه نــا څــه تللــی رايــه تاســو تــه وړانــدی كــول ددې ليكنی يوه اساسي غوښتنه ده.

عــارف تبــسم د جديــد حــسيت يــو نمائنــده پوهېــت دے. د هغــه لــب او لهجــه پــه تــازګي، رعنــائي او توانــائي ډكــه ده. د هغــه لفظيــات

کــه یــوې خواتــه د شــعري روایــت او ادبــي تجــربې د توثیــق عکــس العمــل ښکــاری نــو بلــی خواتــه د نــوی معنویــت د زېــږون، لټــون او پَلَټــون پېلامــه هــم دي چــی لــه علامتــي، تــشبیهاتی، اســتعاراتي اســتعمال ســره ســره تمثیلــي او محاکــاتي انــداز هــم لــري چــی د پښتــو شــاعرۍ د پــرمختګ پــه ســفر بانــدی دلالــت کــوي او د یــو ځــانګړی اسـلوب د جوړښــت واضــح ثــرك لــري. کــه دا ولــیکم چــی د لفظــي تــشکیلاتو پــه تــرخ کښــی یــو نــیم ځــاې هغــه د نیولــوګیزم (NEOLOGISM) تــر حــده اجتهــادي هڅــی کړیــدي نــو کــره کتنــه او باقاعده څېړنه دا اړخ هم ثابتولے شي.

د عــارف تبــسم پــه شــاعرۍ کښــی مــا لــه خپــل ټــاټوبی، خپلــی خــاوری، خپــل ولات ســره ذهنــي او قلبــي تــړون، د مځکــی ســره ټینګــه رشــته، د پښتــو، پښتــون، پښتونخــوا او پښتونــولي ســره نــه پــرې کېــدونکے تعلــق او د خپــل کلتــور، رســم او رواج، دود او دســتور، لــه ښــو او اعلٰــی قــدرونو ســره د وفــا او اخــلاص، مینــی او عقیــدت رویــه لــه ورایــه ښکــاره لیــدلی ده. د هغــه پــه نظــم او غــزل دواړو کښــی معاشــرتي روایــات، ســماجي تــاریخ، انــساني تمــدن، ثقــافتي اقــدار، تهــذیبي ښائــستګي، اخلاقــي رویــې او عــالمي منظرنامــه پــه فکــري بلاغــت او جمالیاتي شعور سره په ډېر مهارت او کمال انځور شوی دي.

د معروضــیت او موضــوعیت پــه حوالــه د عــارف تبــسم شــاعري د خپــل بــاطن او شخــصیت د عرفــان تکــل هــم دے او د نړیــوال کلــی د آشــوب، بُحــران او رســتخیز د آګهــۍ ذریعــه هــم، چــی د کــم عمــرۍ باوجود د هغه فکري پختګي او ذهني بلوغت څرګندوي.

د دې مجمــوعې مطالعــه دا ښودنــه هــم کــوي چــی عــارف تبــسم لــه

جمالیاتي ذوق او د مینی له تجربې څخه هم بې برخی نه دے پاتې شوے خو دا اړخ زما په خیال د هغه په موضوعاتو کښی ضمني او ثانوي حېثیت لري. که دا اووایم چی عارف تبسم په پښتو شاعرانو کښی هغه لومړے ځوان دےچی د عمر د فطري تقاضو باوجود ئې د مینی ضروري ضرورت نظرانداز کړے دےاو خپل عصري شعور ته ئې د تخلیق په صورت ګری کښی زیات اهمیت ورکړے دے، نو غلط به نه وي. هغه معروض زیات لیکلے دےاو موضوع کم خو دلته دا وضاحت زښت زیات ارزښت لري چی په ادبي تخلیق کښی په بشپړه توګه د خالص معروضیت اظهار امکان نه لري، ولی چی خارج هم د تخلیق کار له داخل څخه هغه وخت را وځی چی د هغه د ذات برخه جوړ شی یا د هغه په احساس کښی د خپلی تجربې په څېر شامل شي او اظهار ئې ضرورت او مجبوري وګرځی. سوب ئې دا دےچی د شاعر خپلی تقاضې، عقائد ، نظریات، جذبې، افکار او رجحانات هغه د خپلی خوښی ناخوښی هرکله پابند ساتي. وئیل دا غواړم چی عصري شعور هم د لیکونکی د شخصیت د کُلیت سره په تړون مجبور دے. له دې بغېر هغه د تخلیقي عمل برخه نشي جوړېدےاو که جوړ هم شي د صحافتي تحریر رنګه به له خوند او تاثیر څخه خالي وي.

په دې مجموعه کښی د عارف تبسم ځنی نظمونه لکه "یوولسم ستمبر په یورپ کښی"، "ملګری ملتونه"، "په اټلی کښی د څه وخت تېرولو پس یو نظمیه تاثر"، "ګلبدیپټېر"، " و یورپ ته یوه وېنا" او "The Dream Marchents" زما د پورتنی خبری په تائید کښی وړاندی کېدلے شي. دا ټول موضوعات، معروضي دي خو د هغه د داخل د برخه جوړېدو پس ئې تخلیقي بڼه خپله کړی

ده. هم دغه د تخلیق غوښتنه ده. معروض چې تر څو په موضوع بدل نه شي. خارج چې تر څو د شاعر په باطن کښې تحلیل نه شي او له داخل څخه نه را ووځي، هغه فن پاره نشي بلل کېدے. د مثال په ډول به زهٔ د هغه معرٰی نظم "ګلوبلائزېشن" ستاسو مخ ته کښېږدم :

بې شکه دې کلي کې هر څه ډېر دي
خو د خپلوي چرته درک نه ښکاري
د میني هم څه سلسله نه وینم
د نړیوالو په دې لوی کلي کي
پېژندګلوي د هر چا ګډه وډه
هر یو ږغیږي اوس په بله ژبه
هیڅوک حال نه لري په خپل څنګلوري
بې شکه پراخ دي څلور واړه لوري

د هغه مختصر آزاد نظم "چې ګوېرا ته" هم مطالعه کړئ:

تا چې په کومه لاره
سر و بائېلو
په هغه لاره تګ اسانه دے ډېر
د دې دپاره بس
یو شرط دے لازم
چې سړے ووځی له خپل ځانه
په جهان خور شي

د ۲۰۰٤ء د مارچ په دویمه نېټه (چې د ۱٤۲٥ هـ د محرم لسم تاریخ دے) په کوټه ښار کښې چې د ترهه ګرۍ یا فرقه واریت

کومه ناوړه او ناروا پېښه شوی وه. د هغې بیان چې عارف تبسم په کوم دلآوېز انداز او له غرېوه په ډك آواز کښې کړے دے، هغه د معروض په موضوع باندی د بدلپدلو بهترینه نمونه ده. یوه خارجي واقعه یا وقوعه موثره تخلیقي تجربه هم داسې جوړېږي. په غور ئې و لولئ:

کور ته مې اور واچولو ځکه لمبې پورته شوې
بیا مې له دا خپل وجوده خاوري ایرې پورته شوې
څوارلس سوه کاله پس په ما کښې شو یزید را ویښ
ځکه مې د خپل حُسین له دړده ناري پورته شوې
بیا مې کړو لاسونه نن په خپلو وینو باندي سره
ځکه مې نن بیا پنځه څلوېښت جنازې پورته شوې

عارف تبسم د نظم نګار په حېث په ښو موضوعاتو، ښه منظومات لیکلی دي. د پورتني موضوع سره په تړلی موضوع " کربلا ۲۰۰٤ء" کښې د هغه اختتامیه ډېره بلیغه او موثره ده :

بیا ډېرو خلګو د یزید شکل او قد واغوستو
بیا ئې په ډېرو حُسېني سرونو لوبی وکړې

د هغه " نعت" او ځنې نور نظمونه لکه "جدوجهد"، "؟"، "ښیښه څهره"، "په مځکه جنت" او " اے د فکر سپینه لمره" (د حمزه بابا په حقله) د ډېری ستائینی وړ دی خو زۀ ئې دلته دوه درې مختصر غوندی نظمونه تاسو ته وړاندی کول غواړم، کوم چې زما په خیال، په اختصار کښې جامعیت، په اظهار کښې معنویت او په پېرایه کښې جاذبیت لري. تر ټولو له مخه د هغه نظم "تضاد" ته پاملرنه وکړئ:

ازغن فطرته خلګو
څنګه عجیبه غوندی
خویونه خپل کړو
رنګونه واغوندی
او لاړ شي
په ګلانو ګډ شي

"تضاد" د هغه په یو مسلسل غزل کښی هم موضوع ګرځیدلے دے چی خصوصي کتنه غواړی د پورتني نظم په حواله زما په فهم، په لنډو ټکو کښی، د شعریت په ژبه، زمونږ د معاشرتي ژوند د متضادو رویو او د نفسیاتو په اړه د وګړو د منافقانه دوه مخیزه کردار تر دې زیاته، په زړه پوری انځورګري شاید ممکن هم نه ده. همداسی زمونږ د چاپېرچل د معاشي، سیاسي، طبقاتي او اخلاقي صورتِ حال په اړه هغه یوه وړوکی منظومه د "سائې" تر سرخط لاندی پخپله علامتي او تمثالي بڼه کښی نه صرف د اظهار او ابلاغ حق ادا کړے دے بلکې په دې کښی دا هم څرګندیږی چی هغه په نړۍ او تاریخ باندی ژور نظر لري، د ماضي او حال سره سره هغه د مستقبل امکانات هم ویني. د عصري شعور په رڼا کښی دا نظم د آفاقیت رنګ او د ژوندۍ شاعرۍ مثالي نمونه بلل کېدلے شي :

په څومره هیله
ساده خلک و اسمان ته ګوری
غواړی په ټکنه غرمو
له سرو لمرونو سائې
که څه هم دوې په دغه ښه خبر دي

چي يوه توره او اوږده شپه
را روانه ده بيا
ځکه اوږديږی وار په وار
د ديوالونو سائې

هم دغه يا دغسی احساس د هغه په يو بل مختصر نظم "لمر او سحر" کښی هم جوت دے. په اصل کښی د ماحول توره شپه د هغه په حسيت باندی خوره ده، هغه د حالاتو تيارو خوړلے دے، هغه د وخت تورتم دومره ځپلے، ځکلولے او ځورولے دے چی هغه د ژوند او ژوندَسرو دپاره د رڼا مستقل اهتمام غواړی، حتٰی چی په شپه کښی هم د لمر ضرورت محسوسوي. ګوا سپوږمۍ، ستوری، څراغونه، ډيوې او بَلَبونه هغه وسيع المعاني شپه نه شي روښولے کومه چی د وګړو په حواسو باندی خوره ده، دا تاريکه په اصل کښی د اطمينان، سکون، خوشحالۍ او پرمختګ هغه رڼا غواړی چی ذهن او زړۀ منور کولے شي، هغه لمر غواړی چی زوال او غروب نه لري او داسی "يوټوپيائي" لمر انساني معاشره شايد چی هيځکله نه ووينی خو د عارف تبسم په شانی د ژوندي فکر او حساس طبعی شاعر د نړۍ د ودانۍ سوکالۍ او ترقۍ دپاره که نور هيڅ نه شي کولے. خوب خو ليدلے شي بدرنګه ماحول، په خيال خو ښائسته کولے شي. ماته خپل يو اردو بيت را پياد شو :

اور کچھ کر نے کے قابل تو نہیں سوچ مِری
کاش! دُنیا مَیں تِری اور حَسیں کر سکتا

د عارف تبسم نظم داسی دے :

په نیمه ورځ به می یواځې پرېږدی
یقین د ورځی
په لمر څنګه وکړم؟
ماته د شپې ستا ضرورت دے لمره!
ستا انتظار
تر سحر څنګه وکړم؟

پـه دې مجموعـه کښـی د عـارف تبـسم یـو نثـري نظـم هـم د "قـدر مـشترك" تـر عنـوان لانـدی شـامل دے، زهٔ لـه دې څخـه انکـار نـه کـوم چـی ښـه خیـال بلکـې بهتـرین خیـال پکښـې دے خـو لـه دې سـره متفـق نـه یـم چـی نثـر تـه دی د نظـم نـوم ورکـړے شـي، ولـی چـی نثـر نثـر دے او نظـم نظـم. معنـوي اهمیـت او فکـري ترفـع پـه نثـر کښـی هـم خپـل قـدر او قیمـت نـه بـائېلي. ځکـه د "نثـري نظـم" پـه ډول ئـې د وړانـدی کولـو تـصنع او تکلـف تـه هـیڅ ضـرورت نـشته. خـدائېګو! زهٔ د هـیڅ نـوی صـنف مخـالف نـه یـم خـو دا ضـرور وایـم چـی نثـري نظـم دی د شـاعری پـه ځـاې د نثـر پـه اصـنافو کښـی شـامل کـړے شـي لکـه "ادبِ لطیـف" چـی پـه تېـرو وختونـو کښـی د نثـر برخـه وُ. هـم هغـه "ادبِ لطیـف" تـه نـن "نثـري نظـم" ځکـه وایـه شـي چـی لیکونکـے ئـې برناحقـه شـاعر جـوړ شـي. حـالانکـې "شـاعری جزویـست از پیغمبـری"_ لکـه هـر څـوك چـی پیغمبـر نـه شـي جوړېـدلے. همداسـی هـر څـوك شـاعر هـم نـه شـي جوړېـدلے بلکـې "مُتَـشاعر" جوړېـدل لاهـم څـه ناڅـه فنـي خبرتیـا تـه اړتیـا لـري. د نثـري نظـم "خودسـاخته او نـام نهـاد شـاعر" تـه خـو متـشاعر وئیـل هـم روائېنـت نـه لـري لکـه "نقـلِ کفـر" چـی "کفـر نباشـد". شـاعري خپـل حـدود او قیـود لـري. د هغـو پابنـدي کـه ګرانـه ده، دا خـو اسـانه ده

چې سرېدی "نثرنګار" جوړ شي حالانکې زما په خیال نثرنګار جوړېدل هم ببخي ګران کار دے.

د عارف تبسم د دې مجموعې د غزل برخه هم د معنوي ارزښت او فکري بلوغت په حواله خپل خوند، رنګ، او اغېزه لري یا په نورو ټکو کښې د جدید غزل له شعار او معیار سره ښنګ وهي. لکه څنګه چې ما له مخه لیکلی دي هغه یو بېدار، حساس او ژوندے شاعر دے. هغه شاعري یوه تفریحي مشغله نه بولی ځکه د غزل په بېتونو کښې هم د لوستونکو ذهني تربیه کوي. د هغوې مخ ته حقیقت او واقعیت په شعري پېرایه او موثره لهجه کښې وړاندی کول هغه خپله ادبي وظیفه او علمي فریضه ګڼي. هغه غواړی چې خپل فکر، احساس، جذبه او بصیرت تر خپلو قارئینو پوری ورسوي چې د هغوې دپاره د لطف اندوزي څخه زیات د هغوې په خیالاتو کښې بدلون، ویښوالے او ځلا راولي، دا څو اشعار ئې د مثال په ډول وړاندی کوم:

موږ به په شپه هم لکه ورځ سپینه رڼا خوروو
تیارې که هر څو له سهاره سره لوبی کوي

څراغ را واخلو په تیارو کی په مزل پسې ځو
موږ هره شپه لټون کوو، د لمر په پل پسې ځو

دا به ضرور د چا د جبر ښکار وي
ګنی دا خلګو تیارې څه کولې

زموږ لارښوونکي ټوله ورځ تر لمر چاپېره ګرځي
ځان ته رڼا را ټولوي، موږ په تياره کې ساتي

چا چې پر دوی باندې تيارې راوستې
دوی له هغه څخه رڼا غوښتله

بيا په ټول وطن تورو تيارو خوله لګولې ده
څو خلګو ځان ته څراغونه خوندي کړي دي

زه په دې سپېره منظر عادت نه يم
دا څنګه سپرلی دی، ګلان نه لري

د يوې کونډې ماشومان په سپېدو پورته شولو
وائي مورکۍ! موږ د اتامو په تکل پسې ځو

په دې پورتنيو بېتونو کښې شپه، سحار، رڼا، تياره، څراغ، لمر هغه علامات او استعارات دي چې د عارف تبسم په شاعرۍ کښې ځای په ځای خواره واره ښکاري. دا محض الفاظ نه دي. د هغه د فکر او پېغام د ترسيل، تفهيم او تشريح مرکزي منابع دي او د لوستونکو دپاره زمونږ د سماجي ژوند او سياسي حالاتو د پوهنې بنيادي ذرائع دي. که مونږ په ځير ورته وګورو نو په دې لفظونو کښې زمونږ د چاپېريال انځور له خپلې صحيح څېرې او حقيقي کړو وړو سره موجود دی. بلکې په دې شعرونو کښې د سياست او سياستمدارانو اصل شکل هم محفوظ دی چې ښېخې بدرنګ، قبيح او مکروه دی. له دې په پرته زمونږ د هېواد بې رنګه سپېره منظره او د خوارانو د ژوند ژواك د بدحالۍ او د رزق د تحصيل د کړکېچن او خوږمن صورتِ حال اظهار هم په بليغ

او فصیح تورو کښی مرقوم دے.

عـارف تبـسم ولـی چـی خپـل چاپیرچـل پـه برنـدو سـترګو وینـی ځکـه هغـه نـه تیروځـی، هغـه "مـداریان" ډیـر ښـه پیژنـی. د "نعـرو" پـه ځاې "عمل" غواړی. ګتور او مثبت عمل، دا شعر ئې وګورئ :

ثـــوك د نعـــرو ليكلـــو حـــق نـــه لـــري
زهٔ خپـــل د يـــوال غيـــر سياســـي ســـاتمه

کـه داسـی نـه ده نـو بيـا دا يـو ښـه طنزيـه شـعر دےاو دا ځنـی مـراد دےچـی پـه موجـوده حـالاتـو کښـی د سياسـي شـعور بغيـر ژونـد بـې معنـا دے. ځکـه هيڅـوك دا حـق نـه لـري چـی د قـام لـه بيـدارۍ او د وطـن لـه ترقـۍ څخـه لاتعلـق پاتـه شـي خـو عـارف تبسم چـی د کـوم رجحـان او مـزاج شـاعر دے. زمـا پـه فکـر هغـه "غيـر سياسـي" کيـدلے نـه شـي. البـت هغـه پخپـل تنـدي هـيڅ ليبـل لګـول نـه خوښـوي. هغـه د چـا غلـط کـار پـه لار نـشي تللے. د چـا "بهـروپيې" تقليـد نـشي کولے. د چـا قـام خرڅـونکی او وطـن فـروش پيـروي نـه شـي زغملے. هغـه خپـل فکـر، خپـل نظـر لـري او د هغـه مطـابق د ژونـد دپـاره لاره ليکـه ټاکـل خوښوي لکه په خپل دې شعر کښی چی وائي چی :

ځـــان تـــه رښـــا را ټولومـــه او ابـــاد بـــه وځـــم
مـــزاج د لمـــر لـــرم، د تـــورو تيـــارو بعـــد بـــه وځـــم

عـــارف تبـــسم پـــه انقـــلاب يقـــين لـــري او انقـــلاب هيڅکلـــه د سـترګو پـه رپ کښـی نـه راځـي، هغـه پخپلـه وخـت راځـي. البـت پـه فکـر کښـی د مبـارزې قـوت او لـه نـاموافق مـاحول سـره د ډغـری حوصـــله، پـــه ارادو کښـــی اســـتقلال او پـــه زړهٔ کښـــی تـــوده ولولـــه غـواړی، يـواځی دا نـه بلکـې يـو لـه صـبر او زغـم څخـه ډك ناسـتړے

انتظار هم، لکه په دې شعر کښې چې هغه پخپله وئیلی دي :

بــل بــه شــي د مینــې څراغونــه، څــه هلاکــه ده؟
رونـه بـه شـي دغـه د ژونـد خونـه، څـه هلاکـه ده؟

تاسـو وکتـل چـې هغـه د اُمیـد تلقیـن کـوي ولـې چـې پـه راتلـونکی بـدلون بانـدې غېـر متزلـزل یقـین لـري لاکـن هغـه پښـه پـه پښـې ایښـې، بـې غمـه نـه دےناسـت، لګیـا دے کـار کـوي، پرلـه پسې زیـار باسـي، ذهنونه ویښوي، جذبې را پاروي او رجحان سازي کوي :

رښـا خـوره کـړم چـې هـر چیـرې قدمونـه ږدمـه
و مـــخ تـــه ځمـــه او پـــه لاره څراغونـــه ږدمـــه

ژونـــده! ســـتا غمونـــه پـــه خنـــدا وړمـــه
اوښکـــه اوښکـــه یمـــه خـــو څڅېـــږم نـــه

د ژونــد ، حــالاتــو او مــاحول ســره د هغــه ټینګــه فکــري وابـستګي پخپـل ځـاې، رښتیـا خبـره دا ده چـې پـه اوړو کښـې د مـالګې پـه مقـدار د هغـه د مینـې او ښکـلا پـه بـاب اشـعار هـم ډېـر خورېـلت، نـوے تـوب او زړه راکښـون لـري، هغـه چـې لـه دې موضـوع سـره تـړلې کـوم اشـعار کښلـي دي، هغـه زیـاتره پـسندیده دي، زۀ ئـې دلته صرف څلور نمونې ستاسو مخ ته ږدم:

سـتا د سـپین مـخ پـه ویـړ اسـمان بانـدې خـواره واره شـي
ســتورې دا ســتا د ښائــستې زنــې لــه خالــه وزي

تـر څـو بـه ژونـد مـوږ تبـسمه! پـه لېمـو کښـې کـاوه
د اوښکـو څـاڅکې شـو، د پېغلـې پـه ګرېـوان خـواره شـو

نه به درځم په دغه لاړ کړسره
پرې به ږدم ستا کلې او ښار کړسره

که څه هم ضد دي يو د بل خو تبسمه! ګوره
څومره پخه ده د ګلاب او د ازغي ملګرتيا

د جدت او انفراديت مرقع، دا درې مرصع شعرونه ئې د فني کمال او جمالياتي اظهار ژبنتي زياتې ښائستې او په زړه پورې نمونې دي :

ځانګړتيا نه بائېلم، خپل ځان له سمندره ګورم
ځکه خو واوره وجود زۀ له تاوده لمره ګورم

خپل د پوالونه هره شپه له ځان سره ويده کړم
خداې خبر څوك ئې هر سهار د بل مکان سره ږدي

د تيارو بدي مې نوره په وس نه ده
ننواتې ته مې ور وړه څراغونه

زۀ د عارف تبسم ټوله شاعري نه ستايم، په هغې کښې نيمګړتياوې، خاميانې او کمزورياني هم شته خو په مجموعي ډول ئې زۀ د اسقام او معائب په ځاې شعري حسن او محاسن ته زيات اهميت ورکوم، د مثال په توګه ئې د لفظ د منفرد او جديد استعمال په ترڅ کښې دا يو شعر وګورئ چې :

موږ چې ويشتلو همېشه دلته په سنګ ګلونه
ځکه په دې هېواد کې نه کوي غورځنګ ګلونه

د "غورځنګ" توري د "ټوکېدلو" په معنا شايد چې په اول ځل عارف تبسم کارولې دے، دا د هغه د هنر د ښکلا يو څرك دے. تفصيلي مطالعه ئې ډېر داسې نکات په تاسو واضح کولے

شـي. زهٔ بـه خبـره پـه دې را لنـډه کـړم چـی د دې شـعري مجمـوعې سرسـري لوسـتنه بـه هـم تاسـو پـه دې اعتـراف مجبـور کـړي چـی د لـورالائـي زرخېـزه او نغمـه رېـزه خـاوره داسـی ګلونـه هـم را ټوکولے شـي چـی خوشـبوئي او رنـګ تـه بـه ئـې خوشـبوئي او رنـګ هـم ګوتـه پـه غـاښ پاتـه شـي. د دغـه امکـان پـه رڼا کښـی ماتـه د سـتر مـاوزې تنګ خبره را یاده شوه هغه وئیلی وو چی :

"ګلونه و غوړېدلو ته پرېږدئ "

زهٔ د دې قـول د معنـوي قـدر و قیمـت پـه احتـرام کښـی مجموعـه تاسـو تـه سـپارم او پـه دې هیلـه اجـازت غـواړم چـی تاسـو بـه پخپله فېصله وکړئ چی دا ګل څنګه غوړېدلے دے؟

خاوری
سعیدکګو هر
کوټه
جمعه المبارك
۱۰ مارچ ۲۰۰٦ء

# د عارف تبسم "د لمر پل"

د بـوري د ګلـبن خوشـنوا بلبـل عـارف تبـسم د يـوه خـواږه ملګـري او زلمـي تخليـق کـار پـه حيـث و ماتـه ښيـخـي تـر ډېـر جهـان را تېـر دے، زه لـه هغـه وختـه د ده پـه ژونـدي جـذباتو، تلوسـو او پـه هغـه ښې خوبـه، خوبونـو بانـدي ډېـر ښـه خبـر يـم، چـي د انـساني نېکمرغيـو پـه هيلـه، د بـدمرغيو لمــن را ټولــول غــواړي، زه د ده د تخليقــي وژن د پراختيـــا، صـباؤن او پـه ادب کـي د پـرمختګ د هلـو ځلـو شـاهد (ګـواه) هـم يـم.
دا غالبـاً د ١٩٩٠ع کـال خبـره ده، چـي کلـه پـر مـا بانـدي د لغړخـولي عــارف تبـسم د شـاعرۍ راز منکـشف شـو او بيـا چـي مـا وليـد چـي د سـکول پــه دې کــم عمــره لوســتونکي کــي د شــاعرۍ خــورا ښـه او خونــدور رنګونــه موجــود دي، نــو مــا د طالبعلمــۍ بــاوجود و دې تــه وهڅــاوه، چــي د پښتــو ادبــي ملګــرو پــر ســټېج بانــدي راســي، دا وو چي لـه همـدې سـټيج څخـه يـې داسـي پـه زړه پـوري ابتـدا وکـړه، چـي د ژونـد پـه هـر پـړاو کـي ورسـره د ښـه شـاعر لاحقـه و تـړل شـوه، هـن تـر دې چــي د ادب پــرورۍ ســره ســره يــې پــه انګلــش لټرېچــر کــي د ماســټر ډګـرۍ تـر لاسـه کـړه، هغـه ورځ ده او دا نـن ورځ ده چـي تبـسم د خپـل شـاعرانه منـصب پـه پرتـه د اُردو، پښتـو او انګرېـزي د يـو ښـه نثرنګـار په توګه هم په هر چا باندي خپل ځان و پېژندلو.

ولــي پـه دې مــابين کـی ډېـر ملګـري د نـام و نمـود او غـم روزګــار پـه تکـل کـي د ګمنامـۍ و کنـدو کپـرو تـه لاهـو شـو خـو عـارف تبـسم د ځـنې نامـساعدو حـالاتو بـاوجود هـم غـزل، نظـم او نثـر درې واړه د خپلـي لاري څـورے کـړو، سـره لـه دې چـي عــارف تبـسم پـه شـعوری ډول بانـدي

تـر یـوه حده پـوري د مـشاعرو د آه او واه لـه تـاوده بـازاره او د خپلـي ځېـرې نمـايي شخـه ځـان لېـري سـاتلو، حالانکـه د يـو ښـه تخليـق کـار پـه اړه پـه دې ډګر کي د هغه د فعال رول لوبولو څه انکار نه شي کېدے.

پـه دې لـړ کـی د ادب د چوپـړ دپـاره تبـسم خپـل بـاطن او ظـاهر د رياکـارۍ او زنـګ وهلـي ورځـي شخـه يـو مـخ صـفا سـاتلي دي، دلتـه د اعتـراف پـه توګـه مـوږ د پښتـو د دريې مياشـتنۍ مجلـې " تمـاس" هغـه ګڼـي وړانـدي کولے شـو، چـي د افاديـت لـه املـه اوس هـم ډېـرو ليکوالـو پـه خپـل ريکـارډ کـي خونـدي کـړي دي. د دې مجلـو پـه مرتبينـو کـی د عـارف تبـسم کـارکردګی د ويـاړ وړ ده. همدغـه رنګـه د آي، ډي، ايـس، پـي لـه خـوا څـه هغـه درانـه تقريبـات، چـي پـه ډېـرو حوالـو يـې لـه ادبـه سـره تـړون لازم دے، د عـارف تبـسم او ملګـرو پـه زيـارو سـر تـه رسـېدلي دي او بيـا پـه زياتـه د ګلوبلايزيـشن او مورنـۍ ژبـو پـه موضـوع بانـدي د ګڼـو ژبـو ګـڼ شـمېر سـکالران را غونـډول او بيـا د ښېخـي مثبـت فکـر پـه حوالـه بانـدي د هغـوی و مقـالاتو تـه کتـابي بڼـه ورکـول د عـارف يـو بـې سـارے، ارزښتناکـه او منفـرد کـار دے. پـه افغانــستان کــي د هــوتکي دور د پښتــو تــاريخ "د خپلواکــۍ لمرځــرك" اُردو ژبــاړه هــم عــارف تبــسم تــر ســره کــړه. همدغــه ډول چــي د اُردو د "عکـس العمـل" مجلـې د ايـډيټر پـه حيـث هغـه ځـومره ګټـور مـواد را يـو ځـای کـړے دے هغـه بـس يـوازی د ده برخـه کېـدے شـي، پـه نـورو ډېـرو انګرېــزی، اُردو او پښتــو مجلــو او ورځپــاڼو کــی د ده خــواره واره مضامين او افکار د ده د زيارو عکاسي کوي.

خـو د خپلـو نظريـاتو پـه اړه هغـه وخـت ورکـي نـوره توانـائي پيـدا شـوه چي کلـه يـې د ارتقـا بـام تـه د رسـېدلو خلګـو، د ژوندانـه د انحطـاط پـذير

اقـدار او استحـصالي   اصـليت وليـدو، ځکـه خـو چـي مونـږ د هغـه د يـورپ پـه سـفر کـی و ليکـل شـوو نظمونـو تـه پاملرنـه وکـړو نـو د هغـه تجربـات او مـشاهده لـه مونـږه لانـور لتهـون غـواړي، خـو پيـل بـه پـه دې وکـړو چـي کلـه مـوږ د بـوري د دغـه مينـه وال شـاعر و شـاعرۍ تـه متوجـه سـو، نـو هغـه کـه يـوې خواتـه د بـوري د دې لرغـونی اقـدار لرونکـی خاوري او غرونو سره د خپلی مينی او خپلوۍ اظهار په دا ډول کوی :

خپلـــوی او مينـــه مـــی فطـــرت ځکـــه ده
پـــه خپلـــه وينـــه کـــی بـــورے پالمـــه
مځکـــه دی هـــر وخـــت د اظهـــار نـــوی ګلونـــه کـــوی
ځنګـــه هـــوا دی ده کوهـــاره غـــزل نـــوې لـــيکم
بيـــا دی لمبـــه را پورتـــه شـــوه د بوريـــوالی مينـــی
راغلـــے يمـــه ســـتا تـــر ښـــاره غـــزل نـــوې لـــيکم

نـو بلـي خواتـه د جماليـاتي اقـدارو لـه پـالني سـوا هـم جذبـه، هيئـت، اسـلوب، مـشاهده او د ژبـي بـشپړتيا د ده پـه شـاعري کـي لـه ورايـه ځرګنـده ده، کـه څـه هـم لـه دغـه کيفيتـه سـره د ژوندانـه داخلـي او خـارجي احـساسات پـه فنـي او فکـري معنويـت سـره د لفظونـو پـه پـساله بانـدي د پـسوللو متقاضـي دي، خـو تبسم لـه دغـي تقاضـا سـره د شـاعرۍ و سـماجي عمـل تـه هـم د سـماجي عـلا ئقـو پـه اړونـد بانـدې د حُـسن، رينبتينـوالي او صـداقت صـوت و آهـنګ ور پـه برخـه کـړے دے، چي له دې لاندينی شعرونو څه يې ښه اندازه کولے شو :

تـا چـي بـه شـپه ورځ لـه هـر چـا ښخـه پـه پتـه ګنـډل
زمـــا د نـــوم هغـــه تارونـــه لـــه دســـماله وزی
مـــوږ د ښکـــلا پـــه کاروبـــار کـــي رعايـــت نـــه کـــوو

ستر ګي په پور کي نيسو، زړونه په تاوان ګرځوو
ته ما کړه اوښکه، له بانه مې پر بارخو را توی کړه
زه څو لمحې دا ستا پر ښکلې اننګې تېروم

ګونګۍ وریځې ته د ګل دپاره ژبه ورکړو
پر مځکه باندي په مثال بیا د باران خواره شو

کوفی ښائست په نوم د میني ځکلولي دي ډېر
حُسیني زړونه نور باور زیاته په دوی نه لري

تر تا به هم د تبسم فکر در ورسېږي
نظر اوچت لري، لاسونه که څه لوی نه لري

لکه څنګه چي هر انسان د ژوندانه تېرولو په حقله يو نقطه نظر لري، دغه رنګه به تبسم يقينًا خپل يو نظر لري، خو هغه خپل دا نظر پر خپلو لوستونکو يا اورېدونکو باندي نه مسلط کوي، کېدے شي چي هغه د اينګلز له دې فکره سره متفق وي، چي د ليکونکي اراده چي څومره قدر پټه وي، نو د فني تخليقاتو دپاره هم هومره غوره ده، له دې څخه د فن د کربه توب او د کنایاتي اسلوب د اهميت اندازه کېدے شي، هغه د دې دپاره چي فن د بېلو بېلو سياسي شعارونو او د خطابت له عيبونو څخه صفا و ساتل شي، ځکه چي ادب او شاعري، پخپله خو مقصد نه وي بلکه د مقاصدو د تکميل ذريعه ګڼل کېږي، ولي چي چرته دغه ذريعه په کار راوستل کيږي نو د دې دپاره ښکلې، خوږه او داسي ښائسته جامه په کار ده، چي د تخليق

خوند لا سيوا کړي، د ځينې نقادانو دا رول "چي فن په يو مخصوص چوکاټ کي را تاو کړي"، ځکه د منلو وړ نه دے، چي د ادب فني خاميانې او جمالياتي اقدار يې يو مخ هېر کړي وي، ولي عارف تبسم دا هر څه په خپل نظر کي ساتي او بيا و مخ ته د يو مقصد اېښودلو باوجود هم د اظهار پېرايه ډېره درنه ايږدي :

لا هغسي دے ويران له ډېره وخته
ودان نه ځشو دا مکان له ډېره وخته
دغه څرنګه دُنيا ده نه پوهېږم
پکي نه ښکاري انسان له ډېره وخته

راځئ په خپله و منزل ته خپله لار و تاکو
خبر به ورکه شي، که ولاړه تر ملکه پوری

د تبسم د اظهار په دغه خوږه پېرايه کی سماجی ردعمل، ضرب المثل او د پرمختګ پيغام خو يقيناً شته، مګر په داسي قرينه سره يې خبره کړې ده چي د هر چا د زړه آواز ګرځي. دا ويل به بې ځايه نه وي چي تبسم د ابلاغ برابره تله ساتلې ده، نه يې چرته د ابهام پيدا کول زيار او کوشش کړے دے او نه يې څه غيرمانوس تراکيب په کار راوستلي دي فني خوږلت، ريښتينوالے او د حالاتو و ترخې تجزيې ته يې په ښه پښتنه لهجه کي ځای ورکړے دے، چي د قدامت او جديديت تر څنګ ورسره د تېر وخت تجربات او د اوسنيو حالاتو مشاهدات او د راتلونکی سباؤن خوند رنګ يو ځای کړل شوے دے. په دې رنګ کي نه خو هغه د روايتي ژړا، بېلتون، هجران او در په درۍ نارې وهی او نه د خپل مسلك څخه سرغړونه کوي. د حالاتو په تورتم کی هم د خپل مرام په هڅه دے او وايي :

هیلـــه مـــو بیـــا هـــم لـــه رڼـــا نـــهٔ خېـــزي
پـــای د دې تیـــارې کـــه امکـــان نـــهٔ لـــري
اوســـي پـــه کیـــږدۍ کـــي مجبـــوري یـــې ده
چرتـــه بـــه ځـــي څـــوك چـــي مکـــان نـــهٔ لـــري

څـــراغ را واخلـــو پـــه تیـــارو کـــي پـــه مـــزل پـــسي ځـــو
مونـــږ هـــره شـــپه لټـــون کـــوو د لمـــر پـــه پـــل پـــسي ځـــو
زمونـــږ لاربښوونکـــو زمـــوږ د زیـــارو قـــدر نـــه دے کـــړے
ځکـــه خـــو خپـــل کـــاروان پرېـــږدو او مونـــږ پـــه بـــل پـــسي ځـــو

هر څو که خندونه وي په لاره کي
زه خو اباسین یمه درېږم نهٔ

حـــق مـــي هـــم خـــوري پـــه غریبـــي مـــي هـــم ملنـــډي وهـــي
ځکـــه پـــه ســـر مـــي لـــه دینـــاره ســـره لـــوبي کـــوي
مـــا خـــو لـــه هـــر چـــا ســـره مینـــه او اخـــلاص کـــړے دے
خلـــګ مـــي څلـــه لـــه دســـتاره ســـره لـــوبي کـــوي
لـــه مرګـــه نـــه وېرېـــږې کـــړي د حـــق خبـــره پـــه جـــار
تبـــسم ځکـــه خـــو لـــه داره ســـره لـــوبي کـــوي

د تبسم په شاعرۍ کي د اضدادو تمثیلي اشکال کله په یوه رنګ او کله په بل رنګ کي لیدل کیږي، لکه څنګه چي د اضدادو په اساس د کائیناتو بنسټ دوام مونـدلے دے، هم دغـه رنګـه په شـاعري کـي دغـه اسـتعمال پـه نزاکت سره و شاعري ته د فکر په حواله ځلا بخښي. تبسم و دغه اضدادو ته د خپـل دور پـه هنداره کـي ګـوري، کله د حالاتو تجزیه کوي کله و انسانانو ته

د خپلوۍ پیغام ورکوي او کله ورباندي د طنز غشي اوروي:

ځــــه عجـــب ســـخیان خلـــګ مـــي ولیـــدو
مـــرګ چـــي یـــې وبـــشلو د ژونـــدون پـــه نـــوم

چـي یـې کـړو لېـرى مـوږ لـه خپلـو پـه فتـوو د کفـر
اوس هغــه خلــګ بــاچهي لــه خپــل ایمــان ســره ږدي

کــه ځــه هــم ضــد دي یــو د بــل خــو تبــسمه! ګــوره
ځـــومره پخـــه ده د ګـــلاب او د ازغـــي ملګرتیـــا

مـــا رڼـــا کـــرلې ده پـــه زړونـــو کـــي
زه اوس لـــــه تیـــــارو ځخـــــه وېرېـــــږم نـــــهٔ

د بخـت، نـصیب او قـسمت سلـسله پـه شـاعري کـي د هـر شـاعر و مـخ تـه لـه ابتـدا ځخـه د غوړېـدلي کتـاب پـه شـان پرتـه ده خـو تبـسم د روایت و دغه منزل ته په جلا لاره تګ کوي او وایي:

هـــسي خـــو دے تینـــګ تـــړون د مینـــي زمـــا او ســـتا تـــر میـــان
خـــدای خبـــر چـــي یـــو بـــه او کـــه نـــه؟ مونـــږ د یـــو بـــل نـــصیب
اې غوټـــۍ غوړېـــږه مـــهٔ، د مینـــي ســـپرلے خـــور نـــه دے
دلتـــه دے لـــه خـــاورو ســـره خـــاوري د هـــر ګـــل نـــصیب
مـــا ټـــولي لیکـــي د قـــسمت پخپلـــه ورانـــي کـــړلې
اوس بـــه پـــر خپـــل بـــې وزلـــه زړه خـــالي لاســـونه ږدمـــه

لکـه مـا چـي وړانـدې اشـارتًا وویـل چـي شـاعري د خیـال او فکـر پـه کـالبوت کـې یـو سـماجي عمـل هـم وي، پـه همدغـه اړه چـي کلـه د بـوري دا زرغونــه او سمــسوره ســیمه د یــو اوږدې ډوکلــۍ پــه ناتــار تــاراج ســوه، د مېـوه دارو درختـو ځنګلونـه پـه وچـه صـحرا بـدل شـو، د ډېـرو درنـو او

بڼایه کورونو څراغونه د نیستۍ په اوبو له بلېدو ووتو، نو د ویرانۍ په دغه منظر کې د عارف تبسم د احساساتو څرېکي داسي پورته شوې، چي ډوکال یې د ډوکال او علامت په طور په کار راوستلو :

سینه د مځکي وچه شوله اوس په چیغو وایي
زما وجود به خدایه! کله له ډوکاله وزي

اوس به و تاته څه سندري د سپرلي اووایم
زه خو اغزي لانه لرم په دې ډوکال خبر دے

خود به سپېره کېږي باران نه لري
زموږ بې وزله مځکه اسمان نه لري

یوه خبره چي زه یې د خپلو ملګرو په تخلیقاتو کي بیا بیا وینم، هغه د پښتنو د بدقسمته وطن هغه تاریخي ارزښت دے چي د هغه له جهته استعماري او استثماري قوتونو صرف د دوی له سرونو، عزتونو او ملي وحدته سره لوبې کړي دي بلکه د افغانستان د شل کلن جنګ په اساس چي د دوی د باغونو او رغونو مځکه د خپلو او پردو له لاسه د سرو وینو په باران اباده شوه نو د دغه دردناکو پښتنو درد د هر پښتانه لیکوال په تخلیق کي د خپل فکر مطابق غزوني وکړې. د عارف تبسم په کلام کي دغه درد خو شته چي شته، ولی هغه د خپل ملي درد د دوا د حصول دپاره کنایتًا د نکلونو د هغه شهزادۍ مثال وړاندې کوی، چي د ګټلو دپاره یې د شرط نه پوره کوونکو سر غوڅول وو، ځکه خو وایي :

شرط تر شهزادۍ د رسېدو تبسم وانه ري
زموږ د باچا لور نور هم سرونه خوندي کړي دي

خو تر شرط وړاندې کولو نه اګاهو، هغه د بارودو په اساس د سرو وينو د باران هغه منظر وړاندې کوي، چې له دې سرې مځکې به شايد د وينو ګلان را و ټوکيږي :

پېل د سپرلي چې په دې ښار کې په سرو وينووشو
سر به يوائي و ټوکيږي د سره رنګ ګلونه
ډېر بارودونه زموږ پر مځکه باندي و اورېدو
ځکه اخته دي له يو بل سره په جنګ ګلونه

ويې کرلو بارودونه زمونږ پر مځکه باندي
خدايه کوم فصل به د سرو وينو له نمه وزي

سوځي په کشمير او فلسطين زړونه
وير به لا تر ځو مونږ پر کابل کوو

د دغه شهزادۍ د خپلولو د شرط پوره کېده د تبسم په خيال په يووالي کي دے، ځکه خو په جار واي :

راشئ چې يو کړو ځله دا خواره واره وګړي
د يو کېدو شرط دے تړلے له کاروانه سره

د سياسي پېچ و تاب په دې اخ و ډب کې تبسم هر يرغلګر، داړه مار هغه که د هري نظريې وي نه صرف مخالفت کوي بلکه د هغوی په حواله طنزاً وايي :

د هوا چې په خلوص چا يقين وکړو
هم د هغه ځراغونه يې ټول مړه کړو
تاته په کار دے د ظالم مخ نيوے
ته د دښمن ستاينه ځله کوې؟

چــــا چــــي پـــــر دوی بانــــدي تيــــارې راوســــتې
دوی لـــــــه هغــــــه څخــــــه رنــــا غوښتلـــــــه

خـــو لـــه دې ســـره ســـره تبـــسم د خپـــل دور ســـماجي، سياســـي حـالات او تقاضــې او چـاري د خپـل تخليقـي عمـل پـه تـار بانـدي پـه عجوبه انداز سره داسي پېيي :

عـــدل، انـــصاف حـــق او قـــانون دي تـــش لفظونـــه پاتـــه
پـــه غتـــو غتـــو کتـــابونو بـــاور نـــه دےپـــه کـــار
مخلـص، بـې بـاك، نـډر، بـې لـوث او د وطـن خـدمتګار
د هـــر دېـــوال پـــه دې ليکونـــو بـــاور نـــه دےپـــه کـــار

اوس بـه د تبـسم و هغـه فكـر تـه پاملرنـه وكـړو د كـوم پـه بنيـاد چـي هغـه د نـړۍ د مترقـي هېوادونـو د ظلـم و سـتم او د سـرمايه دارانـه نظـام و هغـه اړخونـــو تـــه ګـــوري چـــي د دوی استحـــصالي ادارې او ملتـــي نېـــشنل کمپنيـاني، كـه و ترقـي پـذير هېوادونـو تـه يـو څـه پـه يـوه لاس وركـوي نـو پـه دا بـل لاس يـې لـه سـود در سـوده سـره بيرتـه تـرې اخلـي او و چاتـه پـر خپلـو وسـايلو بانـدي د قـدرت پيـدا كولـو د ټيكنـالوجی د كتلـو موقعـه لاهـم نـه وركـوي او بيـا د ځنې تـشكيل كـړل سـوو ادارو لـه خـوا پـه ګـران بهـا Five Star هوټلونـــو كـــي پـــه ســـيمينارونو، وركـــشاپس او مـــذاكرو بانـــدي د كړكېچنـو مـسايلو د حـل دپـاره يـو څـو تقريرونـه او د بـې انتهـا دولـت خرڅونـه او بـس ځلـه روانېـدل، پـه دې لـړ كـي د عـارف تبـسم موضـوعاتي نظمونـه د اجتمـاعي شـعور او د عـصري آګهـي عـلاوه د تنقيـد د بـصيرت آئينـه دار دي. "ملګـري ملتونـه"، پـه اټلـی كـي د څـه مـوده تېرولـو پـس يـو نظميـه تـاثر او داسـی نـور ډېـر نظمونـه دي چـي پـه هغـه كـي د خپـل دور ترجمـاني پـه ډېره ښـه توګـه سوې ده، خـو لكـه چي مـا وړانـدې ذكـر كـړےوو چـي عـارف تبـسم د ګلوبلايزېـشن د مغربـي تهـذيب او نـشوونما د ودي او

امکاناتو پـه حقلـه يـو درسـت کتـاب مرتـب کـړے دے. يقينًـا چـی سائنـسی ترقـۍ و دُنيـا تـه وده ورکـړه، خـصوصًا د انتـرنيټ نظـام خـو د دُنيـا ټـولی "ولکـې" يـو لـه بلـه سـره منـسلك کـړې لاکـن د دې تـر شـا عـالمي ماليـاتی اداري او د ډبليــو، ټــي، او او دا عـــالمی ســاهوکاران کــه يــوې خوالــه د ګلوبلايزېــشن او عـــالمي تجـــارتي تنظيمونـــو پـــه اړه د قـــامي زيـــارمنو سـرحدونه را ټولـول غـواړي نـو بلـي خواتـه بـه ترقـي پـذير ممالـك څـه ډول د ترقـي يافتـه هېوادونـو د کثيـر القـومي کمپنيـو تـه خپـل دا مانـده مـارکېټ هـم لـه لاسـه ورکـوي او د نـورو و محتـاجي تـه بـه اړ کيـږي، چـي نـور خـو نـور، دلتـه بـه اکثـره خلـګ ژبـه لا هـم لـه لاسـه ورکـړي ځکـه خـو تبـسم "و يـورپ تـه يــوه وينــا"، "يوولــسم ســتمبر پــه يــورپ کــي" او "قــدر مــشترك" غونــدی نظمونـه ليکـی. عـارف تبـسم دلتـه يـو بـل نظـم "ګليـډيټر" تـر عنـوان لانـدي وړانـدي کـړے دے. پـه دې نظـم کـي د تـاريخ و هغـه تـوره ورځ او دور تـه اشـاره سـوې ده چـي باچهـانو بـه ځنـي مريـان د پهلوانـانو پـه تـورو او چـړو بانـدی يـو د بـل مقابلـه کولـه، چـا چـي بـه بـرے ومونـدو هغـه بـه ګليـډيټر ګڼـل کېـدو، د دغه Coloseum اثار اوس هم په روم او مراکش کی لاموجود دي :

بس د يوه اعزاز ګڼلو په نيت
د څه دولت را غونډولو په نيت
د خپل طاقت ښکاره کولو په نيت
د باچهانو سات تېري دپاره
د څو آقاوو د هوس له وجي
څومره مريانو دلته سر و بايلو
څومره سرې ويني دلته خاوري سولې
څومره خوبونو دلته سا ورکړله

د عـارف تبـسم د شـاعرۍ پـه حوالـه دغـه څـو کرښـي مـا پـه دې نيـت ولــيکلې، چــي ليکــوال او لوســتونکي د ده د شــاعرۍ و بــين الــسطور

تـه پـه خپـل نظـر وګـوري، او خپلـه رايـه پـه خپلـه جـوړه کـړي، زمـا دپـاره کـه څـه هـم د ګـرد کـلام احاطـه څـه ګـران کـار دے، خـو دا څـه اشـعار مـي ولوسـتلو او د هغـه پـه اسـاس مـی ځانلـه لاز جـوړه کـړه، زه دا دعـوه نـه لـرم، چـي تـر ټولو ښـه او تـر ټولو کـم شـاعر دے او نـه دا دعـوه لـرم چـي د ده پـه کـلام کـي بـه يـو مـخ فنـي معايـب ګرسـره وي نـه، د ځنـو تـشبيهاتو، اسـتعاراتو او قـافيو پرلـه پـسې تکـرار، يـا يـوه نيمـه فنـي خـامی شـايد بلـه هـم وی ، البتـه دومـره قـدر ضـرور وايـم، چـي عـارف تبـسم د خپـل وخـت يـو ژونـدے شـاعر دے د هغـه شـاعري د روان ژونـد ، ټـولنيزو حـالاتو او انـساني تمـدن پـه حقلـه د افاقيـت نمونـه ګڼلے شـو، دا پـه دې چـي د پوهـانو پـه خيـال هغـه ادب د افاقيـت د علمبـرداری جوګـه ګرځيـدے شـي پـه کـوم ادب کـی چـي د ملـي او بـين المللـي حـالاتـو پـه تنـاظر کـی د فنـي او جماليـاتي اقـدارو پـه تـړون جديـد مـسايل او موضـوعات را نغښتـل سـوي وي، همدغـه کـار پـه خپـل کـلام کـي عـارف تبـسم تـر سره رسـولے دے بلکـه هغـه د يـو طنـاز پـه انـد "د لمـر پـل" د علامـت پـه اړه د څـراغ پـه رڼـا کـي غـواړي او همدغـه يـې خـواري او کـار دے، پـه کـار دے چـي مونـږ او تاسـو ټـول "د لمـر پـل" و رڼـا تـه ځـان ور و رسوو او ويې ګورو.

پہ درناوي

سيد خير محمد عارف

سول هسپتال محله لورالايی

۱۲ مئ ۲۰۰۵ء

# د خپلي شاعري په اړه څو خبري

زه شاعري څله کوم؟ دا يو ډېر ګران سوال دے. که څه هم کله کله زه پر دې باندي ډېر غور کوم خو څه باقاعده نتيجې ته نه رسېږم، البت دومره پوهېدلے يم چي شاعري څنګه پکار ده ځکه خو هري خارجي واقعې ته زه د خپلي داخلي جذبې له لاري ګورم او چي څه ليکم له هغه څخه شعرونه جوړېږي. ګوا خوښ مي دا وي چي له مقصديت څخه ډکه شاعري وکړم، داسي شاعري چي له انساني ژوند، مسئلو او حالاتو سره سمون وخوري او د مځکني حقيقتونو اظهار وکړي. په دې کي زه څومره بريالے سوے يم په دې اړه نه خو څه دعوه لرم او نه څه فېصلې ته رسېږم بلکه دا حق و خپلو لوستونکو ته پرېږدم، خو دومره ضرور وايم چي ما په کوم دور کي شاعري پيل کړې ده او يا يې اوس هم کوم دا دور ته که څه هم د مادي ترقي معراج وئيل کيږي خو ما د دې ترقي هراړخيز اثرات محسوس کړي، ليدلي او کتلي دي چي په زياتره حواله د انساني نابرابري، ټولنيزي نا انصافۍ ، طبقاتي جبر او په غربت کي په تېزۍ سره له زياتوب سره تړلي دي. ما د سووېت يونين شکست ور يخت، د سوړ جنګ خاتمه، د نوي نړيوال آرډر ابتدا ، د تهذيبونو تر ميان د مصنوعي جنګ پيدا کولو هڅي، د ګلوبلائزېشن منفي اغېزني، ځان وژني بريدونه او نور داسي ډېر حالات او واقعات د خپل شعري سفر په دوران

کـي لیـدلي دي. او د دې پـه نتیجـه کـي مـي پـه نـرۍ بانـدي پـه نـوي شـکل کـي د کنټـرول تـر لاسـه کولـو هلـي ځلـي لیـدلي دي. زمـا دننـه شـاعر پـر دې حـالاتو او واقعـاتو چـپ نـه دے پاتـه سـوے ځکـه د دې حـالاتو او واقعـاتو خـلاف زمـا انـساني احتجـاج پـه يـو نـوي شـعري رنـګ کـي ځـای پـه ځـای زمـا پـه شـاعري کـي موجـود دے، خـو البـت د دې هـر څـه بـاوجود چېـري هـم زمـا اظهـار د یاسـیت، مایوسـي او نااُمیـدي ښـه نـه ده خپلـه کـړې بلکـه هـر وخـت ئـې د يـو نـوي اُمیـد لټـون کـړے دے او دا ځکـه چـی زه د انـسان پـه جبلـي او فطـري صـلاحیتونو او حقیقتونـو پـوخ يقـین لـرم. زه دا ایمـان لـرم چـي الله تعـالی پـه هـر انـسان کـي د نېکـۍ، ښېګـړي او آزادۍ مـاده ایښـې ده. نـن کـه انـسان د شـر، بـدۍ او ظلـم پـه لار روان دے پـر هغـه بانـدي د ټـولنیز تنـاظر اثـرات پراتـه دی، چـی لـه هغـه څخـه د را وتلـو او پـر خپلـو جبلـي صـلاحیتونو بانـدي يقـین پیـدا کولـو ضـرورت دے او دا ضـرورت هغـه وخـت پـوره کېـدلے سـی چـی پـر دې جبلـي حقیقتونـو بانـدي زمـوږ يقـین وي او د دې د بېرتـه را بېـدارولو يـو اُمیـد وي، ځکـه چـي زه خپلـي شـاعري تـه ګـورم نـو ماتـه دا اُمیـد ځـای پـه ځـای ښکـاره کېږي. هـم د دې دپـاره خـو مـا "د لمـر پـل" را اخـستے دے او پـه دې لټـون يـم چـی پـر انـسانی ژونـد بانـدی د دې خـورو تیـارو پـای چېري دے او سهار چېري را خېژي؟

پـه "د لمـر پـل" کـي زه لـه خپـل ټـول شـعري حقیقـت سـره موجـود يـم. څـه چـي زمـا شـاعري وائـی هـم هغـه زه يـم او زه چـي څـه

یم هغه زما شاعري وائی. زما دننه موجود شعري صلاحیت، زما د سوچ، شخصیت او نورو صلاحیتونو روزنه کړې ده. خو دا هم یو حقیقت دے چې زما شعري صلاحیت هغه وخت نور هم را ښېداره سو چې کله په سیاسي توګه د خپلی طالب علمی په دور کې ما منډه ترنډه کوله او د خپلي شعوري ناپختګۍ باوجود مې د حق آواز پورته کولو، له جماعتي سیاست څخه د لېري کېدو پس د ادبي ملګرو قربت او په ټولنیز حواله د خلګو د خدمت جذبې زما شاعري په ابتدا کی و روزله. او زما و خیالاتو ته یې وسعت ورکړو خو هغه وخت د څه وجوهاتو له کبله زه له ادبي دنیا څخه څه لېري هم سوم ځکه به لوستونکي "د لمر پل" کې زما د ابتدائي دور ډېر کم کلام ووینې، بلکه په میان کی څه اووه کاله خو زما شاعري د نشت برابره ده. که دا ووایم چی څه اووه کاله ما له سره شاعري نه ده کړې نو به غلط نه وي. "د لمر پل" کې زما زیاتره شاعری د سن ۱۹۹۹ء پس تخلیق سوې ده. د دې وجه شایدداده چې په دې دور کې زه له یو داسي اداري (اي ډي ایس پي) سره منسلك سوم چې هغه د نړیوال حالاتو او واقعاتو په اړه زما دننه موجود ګرځجن تصویرونه صفا کړو. چې هغه زما د شعري صلاحیت د ښېرته را برسېره کولو پیلامه وګرځېدو. په دې ادراه کی ماته دا موقع په لاس راغله چی زه نه یوائی نړیوال حقیقتونه و سنجوم بلکه و نورو ته یې هم بیان کړم. که څه هم د دې تراخو نړیوال حقیقتونو د را برسېره کولو دپاره ما د نثر لاره خپله کړه خو په

شعوري او لاشعوري توګه هغه حقيقتونه زما د شاعري برخه هم وګرځېدو، ځکه کېدے سي چي لوستونکي زما په شاعري کي هغه تراکيب، خيالات، انداز او بيان نه ويني چي په روايتي توګه د هغه بغېر شاعري، شاعري نه ګڼل کېږي ولي چي د حُسن و عشق بيان، د لب و رخسار تکرار، د وصل او هجر کيفيت، د زلفو او سترګو ستائينه، د مے او جام خوندونه او نور ډېر داسي تراکيب او له دې سره تړلي خيالات زما په شاعري کي يا خو سته نه او يا بيا په اوړو کي د مالګي برابر دي. د دې په پرته زما په شاعري کي د مينې او خپلوي لټون، د لمر رڼا او د سهار تکل، د تيارو غندنه، د تاريخ بدبختي، د انسانانو حقيقت، له خپلو روايانو سره تېنګک تړون، له خپلي خاوری او مځکي سره کلك تعلق او يو نوے اُميد په وار وار ذکر سوے دے او هم دا زما د شاعري حقيقت دے.

نن چي زه خپله شاعري "د لمر پل" په بڼه کي و پښتو مئينو ته وړاندي کوم نو دننه ډېره خوشحالي هم محسوسوم. نن هم زه هغومره خوشحالي محسوسوم لکه څومره خوشحالي چي ما په يو يو شعر ليکلو کي محسوسه کړې ده، ځکه زه دا ټوله خوشحالي له خپلو لوستونکو سره شريکوم. هم دا زما دپاره لويه خبره ده چي د شاعري له لاري زما خيالات و لوستونکو ته و رسېږي. اوس له دې خيالاتو سره اتفاق او اختلاف، د دې ستائينه او غندنه زه د هر لوستونکي حق ګڼم، لکه څنګه چي دا خيالات، خپله تجزيه او

فکر شعر کول زما حق دے هم دغسي له دې سره اتفاق او اختلاف د هر لوستونکي حق دےاو زه به د لوستونکو و دې حق ته هر کله په ورین تندی هرکلے وایم.

تر دې له مخه چې زه "د لمر پل" او لوستونکو له میانه ووزم، غواړم چې د هغو مشرانو، دوستانو او ملګرو مننه وکړم چې د چا په مرستی نن "د لمر پل" تر تاسو در رسي. تر ټولو له مخه زه د خپلو مشرانو استادانو، ورونو او دوستانو سعیدګوهر او سید خېرمحمد عارف د زړه له کومي مننه کوم چې دوی نه یواځی زما پر اولني شعري زیار باندی لیکل وکړو بلکه په ډېرو فکري او فني حوالو یې زما لارښوونه وکړه. هم د دې دواړو مشرانو په ګټورو مشورو "د لمر پل" ترتیب سو. زه د تمثیل حفصه (چې د سعیدګوهر لور ده) ډېره زیاته مننه کوم چا چې د خپل تخلیقي صلاحیت له لاري په ډېره مینه د دې مجموعې ټائټل را جوړ کړو. د لیك دود د سموني په اړه د خلیل باور او د سریزو د کمپوزنګ او ډیزائننګ په اړه د بارکوال میاخېل ډېر مشکور یم. له دې سره سره زه د ډاکټر قراة العین بختیاري او خپل ډېر خوږ دوست او فکري اُستاد واصف رضوی هم په وار وار مننه کوم د چا په جوړ کړي ګنجائش آئي ډي ایس پی کي زما فکري روزنه وسوه. زۀ وخپلو ملګرورازق فهیم،ارسلاخان کاکړ اوسلطان زخپېل ته هم تشکروایم چې هروخت یې زما حوصله افزائي کړې ده . زه د خپل پلار حاجي شېرافضل هم مننه کوم چې نه یواځي هغه

تــه راتلــونکي اخبــارونو او رســالو پــه مــا کــي د لوســتلو او ليکلــو شــوق او دلچــسپي پيــدا کــړه بلکــه هغــه کلــه هــم د يــو روايتــي پــلار رنګــه زمــا او زمــا د شــاعري تــر ميــان د دېــوال درولــو هڅــه نــه ده کــړې. پــه آخــر کــي زه د خپلــو ټولــو ادبــي ملګــرو، دوســتانو او مــشرانو مننــه کــوم لــه چــا چــي مــا ډېــر څــه زده کــړي دي او پــه خپلــه شاعري او ژوند کي مي په کار راوستلي دي.

زه هيلــه لــرم چــی لوســتونکي بــه پــه ډېــر غــور "د لمــر پــل" ولــولي او پــه راتلــونکي وخــت کــي بــه زمــا رهنمــائي وکــړي. خــدای دي و مــوږ ټولــو تــه لــه خپلــي خــوږې ژبــي پښتــو ســره د مينــی او خدمت جذبه راکړي. آمين

عارف تبسم
بورے، لورالائي
۱۹ مارچ ۲۰۰٦



نن په حق چې زهٔ پوهېږم محمده!
ستا په نوم پېژندل کېږم محمده!

ما د مینې هر سبق له تا زده کړے
تر دښمن هم زهٔ جارېږم محمده!

ستا په لار که پټې سترګې زهٔ روان یم
تر منزله به رسېږم محمده!

ستا په ذکر سره نور، راباندې اوري
په تیارو کې نهٔ ورکېږم محمده!

ستاله رویه د هرچا پـه غـم شـریک یـم
د هـر چـا پــه غـم دړد ېږم محمـده!

ستا نـسبت تـل حوصـله راکـوي ماتـه
زۀ لــه هیچــا ، نــۀ وېرېــږم محمــده!

تردې زیاته خوش بختي به نوره څه وي
ستا پـه نـوم نـن هـم یـاد ېږم محمـده!

کوټه
۱۸،اکتوبر۲۰۰۴ء



په خپل خزان ژوند کي سپرلے پالمه
ګل یم له ځان سره ازغے پالمه

ستا په غم زۀ په ځان کي ود ړد ېږم
خپله سینه کي ستازړګے پالمه

هر وخت له ما سره په جنګ اخته وي
په ځان کي څه رنګه سړے پالمه

خپلوی او مینه مي فطرت ځکه ده
په خپله وینه کي بورے* پالمه

نــۀ بدلـــومـــه د بـــابـــا قـدرونـــه
خپـــلــه دری، خپـــل نغـــرے پالمــــه

چيـري بــه بيادحـق اذان پـــورته کـړي
پـه زړۀ کـي تـل بلال ژونـد ے پالمـه

پـر شـونـډو بـانـدي تبسـم نـه لــرم
بـې تــا ژونـدون لکـه نيـمے پـالمـه

کوټه
۰٤،جنوري ۲۰۰٤ء

* بورے = لورالائي



خاوره د سرو وینو له رنګه ګورم
دا خپله مځکه زۀ له جنګه ګورم

ترنغمه باره ږغ و تلے نه یم
ځان دي د شنوبنګړو له شرنګه ګورم

تندے په خاورو لګومه ځکه
دا خپل سپېځلے زړۀ له زنګه ګورم

یم په رڼا باندي مین پخپله
څه به له اوره تا، پتنګه! ګورم

زۀ چې مين په کاڼو نه ولمه
د غالب رنګه سر له سنګه ګورم

زما تبسم ورک په ښائست پسې شو
اوس به يې چيرې ستا له خنګه ګورم

کوټه
۱۶،جولائي ۲۰۰۱ء

# دوه شعرونه

عشق به دې عارفه له ژوندې قطاره وباسي
تا به د غالب رنګه له هره کاره وباسي

يو واري بس يو واري خپل ځان راته لول غواړم
خبر دے که مې بيا خلک دا ستا له ښاره وباسي

بورے - مارچ۲۰۰۳ء



څه خلک بیا د مرګ له کاره سره لوبې کوي
د خپل لستوني له ښاماره سره لوبې کوي

موږ په ښکاره لګیا یو مینه او خپلوي خورؤو
څوک پټ لګیا دي، زموږ له ښاره سره لوبې کوي

موږ به په شپه هم لکه ورځ، سپینه رڼا خوَروو
تیارې که هرڅو له سهاره سره لوبې کوي

ما خوله هرچا سره مینه او اخلاص کړے دے
خلک مې ولې له دستاره سره لوبې کوي

حق مي هم خوري، پـه غريبي مي هم ملَنـډي وهي
ځکـه پــه سـر مـي لــه دينـا ره سـره لـوبي کـوي

خپل لارښوونکي موکاروان مخ ته په لارنه پرېږدي
زموږلـه خواريو ،زموږلـه زيـا ره سـره لـوبي کـوي

لــه مرګــه نــه وېرېږي، کـړي دحــق خبــره پــه جــار
تبـــسم ځکـــه خـــو لـــه دا ره ســـره لـــوبي کـــوي

کوټه
۰۷،مارچ ۲۰۰٤ء



مه څه نور په دغه لاره، ستړی کېږې
زما خبرو منه یاره! ستړی کېږې

ویده ځ خلک ویښول ستا په وس نه دي
کښېنه ګرانه! په کراره، ستړی کېږې

په خپل کلي کې به ښه په سکون اوسې
غواړې څه له پرېدې ښاره، ستړی کېږې

په ځان جبر وکړه، اوسه په تیارو کې
ډېر مزل شته تر سهاره، ستړی کېږې

ستا په خلهٔ مو، داسفر وو ،قبول کړے
تهٔ پر لاره وار بې واره ستړے کېږې

زهٔ خوشومه داظهار په تکرار ستړے
تهٔ به کله له انکاره ستړے کېږې

دراتلووعدې تر ننه وفا نهٔ شوې
له دې ستړي انتظاره ستړے کېږې

تبسم په نوم د میني خطا باسې
تهٔ به کله له دې کاره ستړے کېږې

اسلام آباد
۱۷ ،فروري ۱۹۹۳ء



خـود بـه سـپېرۀ کېږي، بـاران نـۀ لـري
زمـوږ بـې وزلـه مځکـه اسـمان نـۀ لـري

خلـــک لـــه دې دشـــته وېرېـــدلي دي
مـخ تـه سـفر غواړي، کـاروان نـۀ لـري

زۀ پـه دې سـپېرۀ منظـر عـادت نـۀ یـم
دا څنګـه سـپرلـے دے، ګـلان نـۀ لـري

هيلـه مـو بيـا هـم لـه رنـا نـۀ خېـزي
پـای ددې تيـارو کـه امکـان نـۀ لـري

څو، کــه لــه هرڅــه څخــه محرومــه دي
زمــوږ د کلــي خلــګ ارمــان نــهٔ لــري

اوسي پــه کيــږدۍ کي، مجبوري يــې ده
چيــري بــه ځــي څــوک چــي مکــان نــهٔ لــري

پرېــــږده تبــــسمه! نفرتونــــه ټــــول
مينــــه کوه، مينــــه تــــاوان نــــهٔ لــــري

بورے
۱۹۹۳ء



یــم نــا خبره چـــي بـــه کلـــه مـــا توي ملګرتیـــا
کــړي بــه لــه ماســره ترکومــه زنــدګي ملګرتیــا

ګرم دي نهٔ بولم، کـه هرڅومره رانـه لیـري تـښتې
کـــړې ده چاپـــه دې جهـــان د لېـــوني ملګرتیـــا

دنیمـــي لاري یـــاري نـــه مـــنم پـــښتونه یـــاره!
کـه کـړې لـه ماسـره، نووکړه پـښتني ملګرتیـا

ببلتونه! تهٔ به څهٔ مونده کړې په دې وران کلي کي
مــه مـــاتوه تـــهٔ د زړګـــي اودزړګـــي ملګرتیـــا

يـوائي نـه يمـه پرځنـګ مـي دا بـې وسـه سـايه
کـوي لـه ماسـره پـه ډېـره خاموشـي ملګرتيـا

شـومه بـاغي ددې دنيـا لـه رواجونـو څخـه
نۀ کړي هيڅوک هم په دې لاره زما بېخي ملګرتيا

کـه څـۀ هـم ضـد دي يو دبـل، خو تبـسمه! ګـوره
څـومره پخـه ده د ګـلاب اود ازغـي ملګرتيـا

بورے
۲٤مارچ ۱۹۹۱ء



تـهٔ چـي مرورشوې، مرورشـوله ماخپـل نـصيب
ليــري رانــه ولاړو ، بياوشــاته نــهٔ کتــل نــصيب

هسي خودے تېنګ تړون دميني زمااوستاترميان
خـداى خبرچـي يُوبـه او کـه نـه موږديَوبـل نـصيب

اې غوټۍ!غوړېږه مه دميني سپرلے خور نهٔ دے
دلته دے له خاوروسره خاوري دهر ګل نصيب

ګـوره لـه ازلـه مـي پـه برخـه ليـک غمونـه دي
ځکـه خولـه ماسره هيڅکلـه نهٔ شو مـل نـصيب

مـه کـړه تبـسمه! هـسي خوشـي ګيلـې مـه کـوه
نهٔ دے رسېدلےو منزل ته په پـښو شل نصيب
بورے
۱۷مئ ۱۹۹۱ء



رڼاخوره کړم چې هر چیري قدمونه ږدمه
ومخ ته ځمه اوپه لاره څراغونه ږدمه

ستایوه مینه دځوانۍ په بیه واخیسته ما
نوربه دژوند دورځوشپو څۀ حسابونه ږدمه

تېرۀ ازغي به هم له ځان سره په مینه وړمه
که په نظرکي خپل منزل زۀ سرۀ ګلونه ږدمه

زۀ له سخترونۀ و ېرېږم، حوصله لرمه
ترتابه رسم، که په اورکي هم ګامونه ږدمه

یــوار بــه بیادتیــاروتهولي پــردې وشــلومه
پـه دغـه مځکـه بـه بنیادسـتا سـباوؤنه! ږدمـه

مـاتهولي لیکـي دقـسمت پخپلـه ورانـي کړلـې
اوس به په خپل بې وزله زړۀ خالي لاسونه ږدمه

چـي یـې دژونـد نـوې معنـا مـا تبـسم تـه راکـړه
خوندي* به ستا له میني ډک هغه لیکونه ږدمه

کوټه
١٤ جون ١٩٩٩

* خوندي = محفوظ



تـهٔ چـي رایاد شـوې زُمـا یـاره! غـزل نـوې لـیکم
یــوواري بیــانن ســتا دپــاره ! غــزل نــوې لــیکم

پـه تـوره شـپه کـي دالهـام ستوري رااوري پـه مـا
قــصد مــي د ے کړ ے،ترســهاره غــزل نــوې لــیکم

خبـري اوس لـه ځـان سـره پـه شـاعري کـي کـوم
یمـــه روان پـــه خپلـــه لاره، غـــزل نـــوې لـــیکم

بیا دي لمبه راپورته شوه دبوریـوالي میني
راغلـے یمـه سـتا ترښـاره، غـزل نـوې لـیکم

درو زګـا رغم لـه هـره کـاره څخـه وايـستمه
له مودو پس يم په قراره، غـزل نوې لـيکم

مځکه دي هروخت د اظهارنوي ګلونه کوي
څنګه هوا دي ده کوهاره*! غـزل نوې لـيکم

زۀ تبسم ستا دکاروان مل يم لـه ډېره وختـه
ځکـه خـونن عـارفـه* يـاره! غـزل نـوې لـيکم

بورے
۰٤فروري ۲۰۰٤ء

* کوهار = دلورالائي يو غر
* عارف = سيدخېرمحمدعارف



څراغ راواخلو، په تیاروکي په مزل پسي ځو
موږ تولـه شـپه لټون کـوؤ، دلمر پـه پل پسي ځو

زمـوږلاربـښــوونکوزموږدزياروقدر نـه دے کـړے
ځکه خوخپل کاروان پرېږدو اوموږ په بل پسي ځو

دخوشبوي دښمني ګرانـه شوله دومره چې اوس
د پسرلي د جنګ دپاره موږ پـه ګل پسي ځو

دراست روي هيله به اوس له ځانه څنګه ساتو
درُخ ملګري يُو، خوستادزلفو ول پسي ځو

شـایدچي خلـک لـه ایمانـه څخـه سـتړي شـولو
اوس په ښکاره ناريږ وهي چي موږپه غـل پـسي ځـو

دیـويږ کونـډي ماشـومان پـه سـپېدو پـورتـه شـولو
وائــي مــورکۍ موږداتــامو پــه تکــل پــسي ځــو

چاوشـــړلي خوشـــحالیاني لـــه دي ښـــاره څخـــه
کــه خنداغواړو،تبــسم ســره بــه مــل پــسي ځــو

کوټه
۱۵جولائي۲۰۰۱ء



ماچي له ځانه سره ږدي، ترځان مي کم و نیـسي
شکرد ے خدايه! له جهان سره مي سم و نیـسي

زړۀ چـي يـې کلـه اراده زُمـا پـر خـوا کـړې ده
فکر يې يوسي، ځکه ببرتـه خپـل قدم و نیـسي

چي لـه تخليقـه يـې مُنکِـر شـي، آزادي ورکـوي
موږپـــه قـــصورد ځوغنموهغه دم و نیـــسي

بنـــکلاچي کلــه هــم لــه خپلــي دائــرې راو زي
زړونـه خـوارۀ شـي، هره لاره، هريـو چم و نیـسي

یار چي یې هر کله وَډر* شي له نظره څخه
سترګي ګرځجني شي،له خپلوبڼو نم ونیسي

زُما دبخت دکتاب سپیني پاڼي ګوري په ځیر
چي اراده یې دلیکلو شي،قلم و نیسي

دوخت له جبر سره څنګه عارف ژوند تېروي
ر شونډوخور کړي تبسم،په زړۀ کي غم ونیسي

کوټه
۱۰اګست ۲۰۰۱ء

* وَډر = پټ



بیا بــه خوارانــو ګیلــې څــهٔکولې
کــه وای رښا ،دوی بــه شــپې څهٔ کــولې

دا بـــــه ضرورد چاد جبرښــــــکار وي
ګنــي دا خلګــو تیــارې څــهٔ کــولې

د یوظــالم لــه لاســه لیــري شــولو
موږبــه ترمیــان فاصــلې څــهٔ کــولې

هلتــه ټــول ښــارزُما خلاف ؤپــورتــه
هلتــه بــه مــا فیــصلې څــهٔ کــولې

کشکې زمونږ خپل کاروان بې لارې مه وای
مونږ به د بل قافلې ځه کولې

منم له لمره مې پناه غوښتله
ما دوريځو سايې ځه کولې

که له حالاتو ځه مجبوره مه وای
ما تبسم دارشتې ځه کولې

بورے
۲۵جولائي ۱۹۹۲ء



لــــه تبـــسّمه يـــې وفاغوښـــتله
يارعجيبـه غونـدي سوداغوښـتله

مــــادټول عمردعــــوه نـــۀ کولـــه
ماديوځولمحوخنداغوښـــــــــتله

چاچي پر دوئ باندي تيارې راوستې
دوئ لـــه هغـــۀ څخـــه رڼاغوښـــتله

څوک چي وماتـه خندني ښکاريدو
پـه حقيقـت کـي يـې ژړا غوښـتله

چاراتــه وویــل چــي خلــک وائــي
لمرلــه ســپوږمۍ څخــه رڼاغوښــتله

هلتــه مــي ټولي حوصلې ستړي شوې
حقیقـــت ژبـــه دربښـــتیا غوښـــتله

بورے
۳۱جولائي ۱۹۹۲ء

## یوردیف دوهٔ شعرونه

دنــن مــین ځــان دخپلــوي لــه دړده ژغوري، ځکــه
کــوي اظهاردنفرَتو ،مینــه پــه زړهٔ کــي ســاتي

زموږلاربښوؤنکي ټوله ورځ تـر لمرچاپېره ګرځي
ځــان تــه رڼاراټولوي،موږپــه تیــاره کــي ســاتي

کوټه
اپریل ۲۰۰۳ء



لمحـــې د تېرعمردژونـــد لـــه مـــاه وســـاله وزي
ځکه ښائست او خال وخد دي، زماله خيا له وزي

ستاد سپين مخ په ويړا سمان باندي خوارۀ وارۀ شي
ســتوري د ا ستاد ښائــستې زنــي لــه خــا لــه وزي

سينه د مځکي وچه شوله،اوس په چيغـو وائي
زُماوجود بـه کلـه خدايـه! لـه ډوکـا لـه وزي

مه کوه، پرېږده زياته تۀ نور موسوي ضدونه
زُمادياريـــه ليدوهرســـړے لـــه حـــا لـــه وزي

پــه روايــا تود پرون خلــګ ښــه ټينــګ ولاړدي
پــه ډېــره ګرانــه بــه دوخــت تــردې دېــوا لــه وزي

تـاچي بـه شـپه ورځ،لـه هرچاڅخـه پـه پټـه ګنـډل
زُمـــادنوم هغـــه تارونـــه لـــه دســـما لـــه وزي

تـــهٔ بـــې* ترڅودخپلوزلفوبنـــدېوان وســـاتې
آخريـــوورځ بـــه تبـــسم لـــه دغـــه جـــا لـــه وزي

کوټه
۲۹جولائي ۲۰۰۱ء

* بې = دبه يې مخفف



دخوشحال رنګه تبسم هم مسیحا نهٔ مني
عجب ملنګ دے، دمنت دارودوا نهٔ مني

جنګ له هوا سره کوي، خودابدبخته خلک
ډیوې کړي بلې په تیاروکې، خورښا نهٔ مني

موږکه خبره دخپلوی کوؤنو خلک وائي
پرون پرسته دومره زیات دي چې سبا نهٔ مني

منم له تا سره مې مینه انتها نهٔ لري
خوتیتېدهٔ مې د پښتون فطرت بِنا نهٔ مني

تردې به زياته بدبختي دوخت لانوره څۀ وي
خلګ په تا پسې روان دي، بيا هم تا نۀ مني

شايد په خپل حق خبرشوي دي دا خلګ، ځکه
اوس دخوبونو دا خستلو هيڅ سودا نۀ مني

يَوواري بيادتبسم زړۀ په ښائست پسې ځي
خداى خبر څوک به يې راګرځوي، دچا نۀ مني

کوټه
۰۴جون ۲۰۰۰ء



یــو مئین پــه بوئ، خــواهش د ګــل کــوو
ځکـــه پـــه ازغوبانـــدي مـــزل کـــوو

لمراو سپوږمۍ ستا په سپین تندي غـواړو
ګَـر د ســتورو مـوږ ســتا پــه اوربــل کـوو

ځــان موســتاله خیالــه هوســا*کــړےدے
غـــم بـــه دي دزلفو دځنګـــل کـــوو

غـــړي بـــه ودشـــت تـــه اچـــوؤ پـــه څـــه
ځوبــه مــخ تــه نور، یــاره! توکــل* کــوو

سـوځي پـه کـشمير او فلـسطين زړونـه
ويـر بـه لاترځـو مـوږ پـه کابـل کـوو

چيـري بـه خپلـوي اومينـه ومومـو
موږلـه يـوۀ عمـره داتکـل کـوو

موږخپـل تبـسم بـې قـدره کـړے دے
قـدر کـه کوو ،نوموږدبـل کـوو

کوټه
۲۶جولائي۲۰۰۱ء

* په علاقائي لهجه کي تَوکل ته توکل وائي
* هوسا = دمه، خودلته په معنا د بې غمه دے



دا ســـرمايه د زنـــدګي ســـاتمه
ستادلاس هرليک به خوندي ساتمه

رايادوي به دوصال ورځي شپې
توکري*پټ ستا دبنګړي ساتمه

پـه نيمـه لار دي يکړ*پرېښوؤمه
ياده بـه ستا دغـه دوستي ساتمه

غمونه ډېرشو دروزګار خوبياهم
ستاغم زهٔ څومره په خواري ساتمه

ځـوک دنـارو ليکلوحـق نـه لـري
زهٔ خپل د پوال غېرسياسي ساتمه

له چا نفرت زُماعادت خو نه د ے
زړهٔ کي عناد لـه مجبوري ساتمه

ډ يـره شـوه ګرانـه دهـوا دښـمني
څنګه به خپل ځراغ خوندي ساتمه

بورے
۰۲مئ۱۹۹۳ء

*توکري = ټکرې، ټوټې

*يکړ = يوائي



کــولـــــے نــه شــمه دمینـــي داظهـــار فېـــصله
ماتـــــه ده ګرانــــــه داقراراودانکــــــار فېــــصله

ورمــه زاړۀ پلونــه، پــه دالاره بېــا نــه راځمــه
ماتــه پــه سرســترګو قبولــه ده د یــار فېــصله

شایدچي بېا به ټوله شپه زۀ په تیارۀ کي اوسم
پــټ شــوي لمرکړلــه محفوظــه د ســهار فېــصله

په خپله خاؤره با ندي خپله خوښه کړي ده مور
کلـــه مـــو هـــم منلـــې نـــه ده، ددربـــار فېـــصله

له خپل تاریخ سره قدرونه خپل ژوندي ساتمه
لــه نرخــه نــه وزم، پالمــه دبــازار فېــصله

کلــه بــه هــم نــه ســپمومه ځــان دعــشق لــه لاري
وس بــه کــوم، پر مـخ بــه ورمــه ددلـدار فېـصله

کوټه
۰٤ جولائي ۲۰۰٤ء

## دوۀ شعرونه

ځـــان تـــه رڼارا ټولومـــه اوآبادبـــه وزم
مــــزاج دلمرلرم، دتوروتياروبعدبـــــه وزم

تاپــه خپــل لاس دغلامــۍ پــه حوالــه کــړم بېرتــه
زۀ هيلــه مندومــه چــي داځلــي آزاد بــه وزم

کوټه

جون ۱۹۹۸ء



عجبه خلک دي احساس چې دخپلوئ نه لري
ومورته شوي دي خوزمورپه شاني خو ئ نه لري

موږ به دعوه ستاددوستۍ سپرليه! کړې وله
خوستاګلان ستاداحساس رنګه خوشبو ئ نه لري

له روایاتوخه مخ ګرځوي، په مخه چې ځي
مينه، خپلوي د "پروني پلار"د "نن زو ئ" نه لري

کوفي ښائست په نوم د ميني ځکلولي دي ډېر
حُسېني زړونه نورباورزياته په دو ئ نه لري

دادعوه مه کوه چې ستاپه شان حَسين به نه وي

ګل نازکي، سپوږمۍ ښائست څه ستا له رو ئ نه لري

ترتابـــه هـــم دتبـــسم فکـــر دورســـبړي
نظراوچت لـري،لاسـونه کـه څـه لـو ئ نـه لـري

کوټه
۱۰مئ ۲۰۰۱ء

# دوهٔ شعرونه

خلکويوړو ،ښـــه پـــه لـــوی زړهٔ څراغونـــــه
ماتـــه پاتـــه شـــولوټول مـــړهٔ څراغونـــــه

دتياروبـــدي* مـــــي نـــوره پـــه وس نـــه وه
ننــــواتي تـــه مــــــي وَروړهٔ څراغونـــــه

* بدي = دښمني

# تضاد

ازغن فطرته خلګو
څنګه عجیبه غوندي
خویونه خپل کړو
رنګونه واغوندي
او لاړ شي
په ګلانو ګډ شي

کوټه
۲۹جولائي ۲۰۰۱ء

# ؟

زمادزړۀ اوزمادذهن
ترمابېنه ګوره څنګه
عجيبه شان جنګ روان دے
زمادميني په بابت نن
ذهن وائي يک طرفه ده
زړۀ مي وائي داسي نه ده

بورے
۰٤مارچ ۱۹۹۲ء

# اې دفکر سپینه لمره!

(دحمزه بابا په حقله)

اې دفکر سپینه لمره!
ستا دفن په تار پېئلي
دفکرونو ملغلري
زموږ ورثه ده
زموږ تهذیب رونبانه ښکاري
ستا دفن په آئینه کي
زموږ کلتور ځلانده ښکاري
ستا په فکرو فلسفه کي

# غرور

اې زُماد خوښې حُسنه!
ده په تا ولې مغروره
هغه پېغله
چې يې زه، هم
ځان ګڼم خپل
هم جهان خپل

بورے
۱۹۹۲ء

# سایې

په څومره هیله
ساده خلګ واسمان ته ګوري
غواړي په ټکنه غرمو
له سرولمرونو ، سایې
که څه هم دوئ په دغه ښه خبردي
چي یوۀ توره او اوږده شپه
راروانه ده بیا
ځکه اوږدیږي وارپه وار
دډیوالونو سایې

بورے
۱۵ اګست ۲۰۰۱ء

# ډوکال

ما چي خپل غوږ مځکي ته ونيوؤ
نو وامي وربېدو
چي مځکي خپله وچه کلکه سينه
په زوره ووهله، چيغه يې کړه
چي اوس مو ستا اوبو ته
هيله ده اې شنه اسمانه!
ولي چي دلته يزيدانو
سمندرهم کړئ په زوره قبضه

بورے
۱۵ اګست ۲۰۰۱ء



لــه خپلــه قــده راوتلي، پــه جهــان خــوارهٔ شــو
دستورورنګه پرتنـدي دخپـل جانـان خـوارهٔ شـو

که دُوړي هم شوموږله خاوري تړون نه پرېږ کوؤ
پورتـه شـو سـتا لـه قدمونواوپـه ځان خوارهٔ شـو

ګونګۍ وریَځوتــه دګــل دپــاره ژبــه ورکــړو
پرمځکـه بانـدي پـه مثـال بیادباران خـوارهٔ شـو

پــه اراده خــو دیَــوهٔ منــزل وتلــي وُ تــول
پــه بېلـو لارو ځلـه خلـک دکـاروان خـوارهٔ شـو

څو عجيبه غونډي مئين د ګلو دا سي هم شته
چې د سپرلي غونډي ټول عمر په خزان خوارۀ شو

د رڼا ګانو دعوېدار يُو ، په تيارو کې اوسو
څو مره ګړځونه مو په زړونو ، په ايمان خوارۀ شو

ترڅو به ژوند موږ تبسمه! په لېمو کې کاوۀ
داوښکو څاڅکي شو ، د پېغلې په ګرېوان خوارۀ شو

کوټه
۰٤ مارچ ۲۰۰۲ء



زۀ په تورو شپو کي هم ورکېږم نۀ
لمريمه په دوؤګوتو پټېږم نۀ

مارښا کرلي ده په زړونو کي
زۀ اوس له تيارو څخه وېرېږم نۀ

ماخپل يو منزل ومخ ته اېښې دے
ځم، مزل کومه، ستړے کېږم نۀ

ژونده! ستا غمونه په خندا وړمه
اوښکه اوښکه يمه، خوڅڅېږم نۀ

هرڅوکــه خندونــه وي پــه لاره کــي
زۀ خواباســــين يمــــه، دريږم نــــۀ

لمرد خپل ښائست را څخه ليـري کړه
کـاڼےنـه يـم زۀ، چـي بـه ويلـيـږم نـۀ

خاوري يم، لـه خاوروسره کړم مينـه
زۀ پــۀ سپوږمۍ، ســتورو مينيږم نـۀ

کــسّي دي دسترګوتبــسّمه! يــم
اوښـکي يارانجـۀ نـۀ يم، بهيـږم نـۀ

له شوګران ترابيټ آباد پوري په لاره
۱۲اکتوبر۱۹۹۸ء



دهـواچي پــه خلـوص چـايقين وكــړو
هـم دهغـه څراغونـه يـې تـول مـړۀ كـړو

تـوري شـپې پـه لمرقبضه راځخـه وكـړه
اوس بـه كـډه موږ پـه لوردلمرخاتـۀ كـړو

زموږترميـان بـه فاصـلې كلـه كميـږي
دبېلتـون ژړامـي كـسّي هـم اوبـۀ كـړو

تناوۀنـه د خېموپـه پـرې كېـدودي
په دې دشت كي به دڅان ساتنه څۀ كړو

وې ايـستم سـره لـه اوښـكو تبـسّمه!
ماخوڅان ورته په ستركو كي رانجۀ كړو

بورے

۱۹۹۲ء



بـل بـه شـي دميـنـي څراغونه، څـه هلاکـه* ده
رڼـه بـه شـي دغـه دژوند خونه، څـه هلاکـه ده

دي کـړېږ وړېږ تـولي کـوڅې دميني، پـام کـوه
اخلـه لړپـه خيال، تـهٔ قدمونه، څـه هلاکـه ده

بس په دې اُميد تېروم ژونـد لـه اند ېښنو سره
تېربـه شـي آخـرواړه غمونه، څـه هلاکـه ده

تېښته له مرګ نشته، خو تهٔ هم تازيله* مه کوه
لږصـبرلاوکـړه اې ژوندونـه! څـه هلاکـه ده

مه شکوه غوتې، تهٔ د سپرلي په پېل کې مه شکوه
دا غوټۍ به پای شي، سرهٔ ګلونه، څه هلاکه ده

مینه موتازه ده، دومره زرموبېلوې ولې
څوورځې موپرېږده اې بېلتونه! څه هلاکه ده

لَوَظ یې دے کړے تبسمه! درته رابه شي
ګرځې ولې دا سې بې سکونه، څه هلاکه ده

بورے
۱۰اکتوبر۱۹۹۱ء

* څه هلاکه ده = څه تادي ده
* تازیله = تادي



مطلب دي څه دے وايه ياره! سم حساب به کوؤ
بديمه زۀ که زُما لاره، سم حساب به کوؤ

کړودي په برخه زما غمونه، تۀ په کومه تښتې
خلاصېدے نه شې بخته ياره! سم حساب به کوؤ

د دې دنيا په عدالت او په انصاف څه باور
په مخ کي ستالويه باداره! سم حساب به کوؤ

کله خو زما پر خواهم راشه، دا تياري رښا کړه
زما او ستا څه ضد دے سهاره! سم حساب به کوؤ

مینه په لاره دیوۀ بل موږ تَللے نه شو
تۀ راشه کښېنه په قراره، سم حساب به کوؤ

هلته ستاواک ؤ ،فېصلې به ستا په خوښه کېدې
دلته زماواک دےظلم کاره! سم حساب به کوؤ

ما تبسّم ستاهر ستم په پته خًله سهلو
راووتم چې ستاله ښاره، سم حساب به کوؤ

بورے
۰۲فروري ۱۹۹۲ء

○


دے راته پروت بیادفکرونوکتاب
لولمه زۀ نن دیادونوکتاب

پانه په پانه ستاوصال ګورمه
رااړوم د اُمیدونوکتاب

زۀ به د غم څه تعریف وکړم درته
مانه دے لوستےدغمونوکتاب

زۀ هم په خوب کي ستاد رځم او که نه
دےستا په نوم زمادخوبونوکتاب

ورځ په ورځ اَړوؤ ،ورقې دژوند
زربه شي ختم دعمرونو کتاب

چې شي يادګار زمُا اوستادميني
جوړوم زۀ ستاله خطونو کتاب

زماد نصيب ليکني نه وې پکښې
مادے کتلےدبختونو کتاب

بورے
۱۰فروري۱۹۹۲ء



ســوځم، کبابېږم، دهجران پــه اورکــي اوســمه
بیاهم سلامت یم که ژوندے په ګورکي اوسمه

ډېره خاموشي شي چي مي زړهٔ ستا په نوم وغورځي
څومره شم یواځي، که څه هم پـه شورکي اوسمه

مـه پټـوه سـترګي راتـه خلاصي دروازې کـړه تـهٔ
زهٔ لـه ډېـره عمـره سـتادزړهٔ پـه کـورکي اوسـمه

وګرځه، ښائـست کـه دي هرچیـري پـه نظرراغلـو
زهٔ بــه هــم هَلَتــه* د یــو چــاڅنګلورکي اوســمه

ستا مغل بنائست لـه آزادۍ را ګـر ځـــولے یــم
ځکه خوشحال رنګه په دې رتهنبور کې اوسمه

ژاړي مځکـه، وائي زمـا سـينه چاوچـه کـړې ده
زۀ دلتــه دکـوم ظـالم يزيـد پـه زوركـي اوسـمه

زۀ يو تبـــسم بــه دچا ،چــا دزړۀ ســكون شـــمه
زۀ دچـــا پـــه زړۀ ،دچادســـترګوتوركي اوســـمه

اسلام آباد
۲۷مارچ۲۰۰۱

* هَلَته = په علاقائي لهجه کې هلته ته هَلَته هم وائي



پــه لاس کــي هرســړے چي تُــوره او خنجــر ګرځــوي
ځنګــه پــه خپلواوړوبــا نــدي خَلــګ ســر ګرځوي

څوک شو له تندي مړۀ يَوڅاڅکےيې نصيب نه شولو
څــوک پــه ورغــوي بانــدي واړۀ ســمندر ګرځوي

برائــي ټولــه شــپه تيارو پــه غونډېــدو تېــره کــړه
درڼاجنــګ تــه ســهارولاړېې، اوس بــه لمر ګرځــوي

دبڼوغـشي زمـادزړۀ پرخـوارا خلاص چـي نـه کـړې
مخ به يې څوک نيسي اوڅوک به دا لـښکر ګرځوي

ما ځيګرونــه مــود کلي اوس بــې خونــده شــولو
نه پېغلي شته، نۀ څوک منګي پر وچ ګودر ګرځوي

څوک به دي خپل کړي څوک به زړۀ درباندي وسوځوي
هرسـړے دلته پــه ســينه کــي ثابــت غرګرځــوي

تبسم بيا هم څهره خپله په خپل رنګ کي ساتي
څــومره ګرځونــه پــه هينــداره دځيګرګرځــوي

بورے
۲۲جولائي ۲۰۰۱ء



چي په ليدويې زُماساه، له سينې سمه وزي
هغه نجلۍ اوس له خپل کوره ډېره کمه وزي

هره دُرخود نن، که غواړي ترپښولاندي زړونه
خوزماخيال دےچي کسات* بې* ترآدمه وزي

که دمنزل پرخواروان يم، زۀ يواځي نه يم
ګوره سَل پلونه زما له هر يَوۀ قدمه وزي

ويې کرلوبارودونه، زموږپرمځکه باندي
خدايه! کوم فصل به دسرووينو له نمه وزي

پام کوه څوک چي قلم نه کړي ستا دګوتوژبه
ډېري ترخې خبري نن ستا له قلمه وزي

خدايه! خزان دتوروبډو* رانه ليري ساتې
دلته لمرونه له هرڅاڅکي د شبنمه وزي

څنګه به ژوند کړي تبسّم له سَل غمونو سره
چي ډېر په ګرانه دخپل يار له يوۀ غمه وزي

کوټه
۰۱جون ۲۰۰۲ء

*کسات = انتقام
* بې = دبه يې مخفف
*بډه = زياته تياره



ستا د ســـتر ګو تاب لرو ، طاقـــت لـــرو
زورلرو ، پـــه زړونـــو کـــي قـــوت لـــرو

لیـــري ؤمنـــزل کـــه تـــر امکانـــه هـــم
ځـــو به، حوصـــلې لرو ، همـــت لـــرو

زموږ پر ســـتر ګو باندي پـــردې نـــه راځـــي
موږ پـــه خپـــل نظرکـــي حقیقـــت لـــرو

وخـــت ســـره کـــه نـــه ځو ، لېـــوني نـــه یُـــو
ســـرکي یَونـــشه دبغـــاوت لـــرو

ځـــان کـــي يو جهـــان آبـــادولـــے شـــو
زړۀ لرو ، ســـــينه لرو ،وســــعت لـــــرو

هرڅولراوبرکـــه خـــوارۀ شـــوي يُـــو
بياهم پـه خپـل ميـان کـي يووحدت لـرو

نـــه شوؤتبـــسمه! پتہــه خلـــۀ پاتـــه
حــق وايُو ،دحــق خپلــوي عــادت لــرو

کوټه
۳۰اپريل۲۰۰۱ء



ستا د راتلو په امیدونو باورنهٔ دې پکار
نهٔ دې پکار ستا په لوظونو باورنهٔ دې پکار

خدائ خبر کومه لمحه راشي د تیارو په زدکې
پهٔ رنګینیو د ښارونو باورنهٔ دې پکار

عدل، انصاف، حق او قانون دي تش لفظونه پاتېه
په غټو غټو کتابونو باورنهٔ دې پکار

هره لمحه دي وي ژوندون، هره لمحه دي مرګ وي
اې وختـه! ستا په ساعتونو باورنهٔ دې پکار

مخلص،بې باک،نډر،بې لوث اودوطن خدمتګار
دهردېــوال پــه دې ليکونوباورنــۀ دےپکــار

ستادښې ورځې خواهې نشته تبسّمه! هيڅوک
دخودغرضــو پــه غوښــتونو باورنــۀ دےپکــار

بورے
۰۸مئ ۱۹۹۲

## يو شعر

يُــــودپرون خلـــک دســـباهم بـــصيرت لـــرو
ځکــه خولــه وختــه ســره نــن هــم عــداوت لــرو



ترخوبــه داعجبــه غونــدي زنــدګي تېــروم
داستاله لاسه پاتـه ژوندۀ بېرپـه خـواري تېروم

ماپــه تکــل دمينــي نيمــه زنـدګي تېـره کـړه
اوس نوري شپې په انتظار بـه دمرګـي تېروم

راپېښنه ماتـه شوه بادارە دغـه ښنګـه خـواري
چي په خپل لاس چړې دغم په خپل زړګـي تېروم

ښومره سپين زړےيم،ده زمادعقيدت انتهـا
بختــه داعمربــه دچــا پــه بنــدګي تېــروم

چي نيم اوروا خلي اونيم سوځي نۀ،زۀ هم دغسي
دغم په اورکي وخت په شان دلُوندلرګي تېروم

تۀ ماکړه اوښکه له بانه مي پربارړخوراتوئ کړه
زۀ څولمحې داستاپرښکلي اننګي تېروم

ډکه شوه زياته تبسّمه! پېمانه د صبر
ترڅوبه ژوندپه دې سماج کي په تنګي تېروم

بورے
۱۹اپريل ۱۹۹۱ء



زما او ستا ترمیان یاره! بېلتون له ډېره وخته دے
زما له تا سره دغه تړون له ډېره وخته دے

ورځ هم لکه شپه پر ما تېرېږي له تیاروډ که
ما ته انتظار د سباوؤن له ډېره وخته دے

بیا یې خوشحالیاني زموږ د ښار خاوري ایرې کړلې
دلته چاپالله داجنون له ډېره وخته دے

چاچي به هر وخت تُوره تړله د افغان په ننګ
دلته ضرورت د آ* پښتون له ډېره وخته دے

زموږ خلګو په زړپسي بائيللي خوشحاليانې دي
دا خُوئ يې خپل کړے د قارو ن له ډېره وخته دے

ما هم با چهي په دنيا کړې بې حسابه ده
ما هم خپل سر اېښے پر ځنګو ن له ډېره وخته دے*

زۀ له ځان سره مينه، ښائست او تبسّم ساتم
ځکه مي په څنګ کي خوږ ژوندو ن له ډېره وخته
دے

کوټه
۰٤ مارچ ۲۰۰٤ء

* أ - هغه
* په تصورمي ځان باچا کړو
سرمي راپورته کړو ملنګ د دنياومه



لیــري ســره او ســود تړون پــه نــوم
ژونــد کوۀ دنوي ســباوۀن پــه نــوم

تېروخت یادوي اوس دپرون په نوم
څه نه کېږي دلتـه د بدلون په نوم

ویــې کړلــې لــوبي پــه ســرونوزمونږ
څـه کـې ۀبللـي دژونـدون پـه نـوم

ځوبه اضطراب راتـه تسکین ښائي
ځوبــه خطاوځود ســکون پــه نــوم

یو خوئ چي يې هم د پښتون نه درلود
نن هغه یادیږي د پښتون په نوم

څه عجب سخیان خلک مي ولیدو
مرګ چي يې وبښلو دژوندون په نوم

کوټه
۲۷مئ۱۹۹۲ء

## دوه شعرونه

سپوږمۍ په سترګو کي کړم پټه، پرېوځم
ولي تیارې د شپې په خوب وینمه

ما شیش محل دے په نظر کي ایښے
په ځان کي څنګه لېونتوب وینمه



زړۀ کـي مـي ديـار واړه غمونـه خونـدي کـړي دي
ماخو پـه خپـل ځـان کـي وسعتو نـه خونـدي کـړي
دي

خپل وجود مي سـتاد تګه پـس پـه لاري خور کړلـو
تۀ خورانه ولاړې،مادي پلو نـه خونـدي کـړي دي

مـورډ مځکي خلـک يُو ،پـه خـاورو يُومين ځکـه
موږپـه خپلـه مځکـه بنيـادو نـه خونـدي کـړي دي

بيابه له خزان سره پـه جنـګ کـي حوصله راکـړي
ماپـه دغـه نيـت يَو څوګلـو نـه خونـدي کـړي دي

ښــه دي د حالاتو لـــه ســـتمه څخـــه ليـــري دي
زموږ د کلي خلکو خپل خوبو نه خوندي کړي دي

بيا پــه ټــول وطــن تورو تيــارو ځُلــۀ لګــولې ده
ځو خلکوو ځـان تـه څراغـو نـه خوندي کـړي دي

شـــرط ترشـــهزادۍ درسېدو تبـــسّم وانـــه ري*
زموږ د با چـالُورنورهم سـرو نـه خوندي کـړي دي

کوټه
۱۶اپريل ۲۰۰۱ء

*وانه ري = وَنه هاري،وَنه بائيلي



وجود مي خورشو ،لاخور ېږي، اوس له حده وزم
لکــه ســايه د مــا ځيګر لــه خپلــه قــده وزم

وابــه غونــدم د مينــي وا ړه ښائــسته رنګونــه
زۀ د نفــرت اوبــد رنګۍ لــه خــال وخــده وزم

د خپل منزل پــه خوا پــه دې باندي مزل کومه
پــه حقيقــت کــي دامکــان لــه دې ســرحده وزم

له سپېرو خاورو سره مامينه پرې ابنبې نه ده
نو بيابــه څلــه زۀ د خپــل مــدار لــه حــده وزم

د جهان ټولي توري بدې کړم په ځان کي ټولي
دلمــر پــه رنګــه دتيــارو لــه هــره زده وزم

شايد دخپل ذات دتکميل پرخوا روان يمه زۀ
شـــوم تبـــسّم دښـــوملګرے ،ترابـــده* وزم

کوټه
۱۷جولائي ۲۰۰۱ء

*ترابده = زياته



سفرکوم دفکرشپه ورځ ترفطرته پوري
رسېدۀ غواړم دښکلاترحقیقته پوري

ماخوکاروان ؤ روان کړے،په دې نه وم خبر
خلک بېلېدل،ملګري ول،ترضرورته پوري

دخپل بېرغ ددرولوځائ مونه کړو پېدا
عمرمولنډ شو،نه رسېږو تر،وحدته پوري

فکرونه وران شو،ښه خیالونه هم بې قدره شولو
ادب محدودشوادیب تر شخصیّته پوري

داتبسّم چې له هرښکلي سره مینه کوي
رسېدۀ غواړي دښکلاترحقیقته پوري
بورے

۱۹۹۹ء



دتــول ښـــارخلک راتــول دي، دبلا خــلاف جنګېـــږي
لـــه پرونـــه يـــې زهٔ وينم، دســـبا خلاف جنګېـــږي

دا ســـاده خلـــک روان دي، دتيـــارو ملګري کېـــږي
يولـــښکرځني جوړېږي، درنـــا خلاف جنګېـــږي

حوصله ورکړې تهٔ خدايه! کاميابي يې په نصيب کړې
ځوروښـــانه ځراغونـــه دهـــوا خلاف جنګېـــږي

ورتـه ګـورئ يَوبـل وژني، سـره خپـل دي خوخپـل وژنـي
خپل ښائسته کور يې برباد کړئ دادچا خلاف جنګېږي

اوس که ګټه وي که زيان وي، وانجام ته يې نه ګوري
بـد رنګي د زمـانې نـن د ښـکلا خلاف جنګېـږي

لـه اوږو څخـه محرومه، لـه اوبـو څخـه محرومـه
داويـدۀ خلـګ بـه کلـه د باچـا خلاف جنګېـږي

پـه شعرونو، په ليکونـو انقلاب راوستل غـواړي
تبـسّم هـم لېـونـے د ے د دنيـا خلاف جنګېـږي

يونيورسټي هاسټل
کوټه
٠٤ مئ ١٩٩٧ء



دخوشحالۍ دخپلولوهوا نه لرمه
عجب سړے یم دخندلوهوا نه لرمه

زۀ لادمځکي له حالاتومطمئين نه يمه
زۀ وسپوږمۍ ته دختلوهوا نه لرمه

دکوتي ښارکه هرڅوښکلے دے، بې تاويران
دے
زۀ دلته نورداوسېدلوهوا نه لرمه

زۀ دفطرت هره ذرّه کي دښکلالټون کړم
له خوارۀ خياله دوتلوهوا نه لرمه

اوس زمـاوجودهم دتيـارو يَوبرخـه وګرځېـدو
ځکـــــه دلمردراختلوهـــــوا نـــــه لرمـــــه

زړهٔ مي راډک شي،اوښکي لارغوا ړي خوبياهم ګوره
لــــه يـــوهٔ عمــــره د ژړلوهــــوا نــــه لرمــــه

زمادننـــــه تبـــسّمه! يَوجهـــــان آبـــــاد دے
ځکــــه لـــــه ځانـــه دوتلوهــــوا نــــه لرمــــه

يونيورسټي هاسټل
کوټه
۲۷ جولائي ۱۹۹٦ء

# لمراو سحر

په نيمه لاربه مي
يو اځي پرېږدي
يقين دورځي
په لمر څنګه وکړم؟
ما ته د شپې ستا ضرورت دے لمره!
ستا انتظار........
تر سحر څنګه و کړم؟

بورے
۱۵ اګست ۲۰۰۱ء

# جد و جهد

زموږ په بنیاد کې ده ړنا اخښلې
ځکه مو کله هم تیاروته ځان ورکړے نه دے
نن که په موږ باندې
تیارې دې زورورې غوندې
بیامو هم غړې اچولې نه دې
نورکه څه نه وې
دیَوۀ څراغ ړنا خوروؤ
وګوره چاد خپلو زلفو
دتارونو پلیتې راوړلې
څوک په پیاله کې د خپل زړۀ وینې
راوړې او راځې
هریو لګیا دے ترخپل وسه پورې
چې بس دا یَو څراغ خوبل وَساتې

کوټه
۱۶ اګست ۲۰۰۱ء

# چې کوبرا ته

تاچې په کومه لاره
سروِبائیلو
په هغه لاره تَګ اسانه دے ډېر
ددې د پاره بس
یو شرط دے لازم
چې سرېےووځي له خپل ځانه
په جهان خورشي

له بوري ترکوټي په لاره
۱۵ اګست ۲۰۰۱ء

# کوټه

## (لسم محرم ۱۴۲۵هجري)

کورته مي اورواچولو، ځکه لمبې پورته شوې
بيامي له داخپل وجوده، خاؤري ايرې پورته شوې

ځورلس سوه کاله پس په ماکي شو يزيدراويښ
ځکه مي دخپل حُسيڼ له دړده نارې پورته شوې

بيامي کړولاسونه نن په خپلوو ينوباندي سرۀ
ځکه مي نن بياپنځه ځلوښت جنازې پورته شوې

کوټه
۰۲مارچ ۲۰۰۴ء

# کربلا ۲۰۰٤ء

نوم دي يادېږي په تاريخ کي په ښوتکوباندي
تاپه نړۍ کي د عظمت يَولوئ مقام موندلے
کربلا! ماهم داستاخاؤره مقدس گڼله
ځکه چي حق داستا پرخاؤره ؤدوا م موندلے

خودتاريخ پاڼووَماته دا هم وښوؤ چي
ستاودې خاؤري ته عظمت د حُسېن ويني ورکړو
هم ستاپه دې خاوره څه څوَرلس سَوه کاله وړاندي
حق اوربنتياته تقويّت د حُسېن ويني ورکړو

خوڅوَرلس سَوه کاله پس،نن هم په دغه خاؤره
ډېربدنونه دحُسېن ټوټې پراته دي
ستاپه کوڅواوستاپه په لاروکي نن بيا يوواري
ډېرارمانونه دحُسېن خاوري ايرې پراته دي

نــن بيا يزيد ســتا پــه دې خــاؤره ســررا پورته کړلـو
بيــايې پـــه ډېر وحُـــسېني ســـرونولوبي وکـــړې
بيا ډېر و خلکو د يزيد شــــــکل او قد وا غو ســــــتو
بيــايې پـــه ډېر وحُـــسېني ســـرونولوبي وکـــړې

کوټه
۰۲مارچ۲۰۰۴ء
۱۰م محرم۱۴۲۵هجري



مـوږچي ويشتلوهمېـشه دلتــه پــه ســنګ ګلونــه
ځکـه پـه دې هيـوادکي نـه کـوي غـورځنـګ ګلونـه

پېل دسپرلي چي په دې ښارکي پـه سرووينووشو
ســږبه يــواځي وَتـﮩـوکېږي د ســرۀ رنــګ ګلونـــه

ډېربارودونـــه زموږپرمځکـــه بانـــدي واوربـــدو
ځکــه اختــه دي لــه يوبــل ســره پــه جنـګ ګلونـه

اوس مـي هـم روح محسوسوي،زموږدوصال خوندونـه
ســـــړه هــــوا ،وړه خندا ،دبنګړوشـــــرنګ،ګلونه

زمـــادخزان ســـره ســـيالي ترآخـــري عمـــره ده
ځکـه خونـۀ کرمـه اوس زۀ پرخپـل ثنـګ ګلونـه

ډوکـال د مځکـي او اسـمان تـولي اوبـۀ وخـښلې
زموږلـه هيوادځخـه يـې ورک کړلـو پتنګ، ګلونـه

اوس بـه لـه کومـه ځايـه ستازلفوته راوړي ګـلاب
پرکوثوغـــواړي، تبـــسّم لکـــه ملنګ، ګلونـــه

کوټه
۰۷مارچ ۲۰۰٤ء



ځانګړتیا نه بائیلم، خپل ځان له سمندره ګورم
ځکه خو واؤره وجودزۀ له تاؤدۀ لمره ګورم

سړاشنۀ شوي دي ماران له هریوبُوټي سره
که مې دایادۀ ،بیابه هرتُخم له برّه ګورم

په سینه باندي مادي وړي بې حسابه غشي
اوس به دکاڼي رنګ ګلونه هم له سَره ګورم

که ټول ښائست پرمارااوري، څه خبره نه ده
څله به ښکلي خلک زۀ ،دزړۀ له دره ګورم

پــه ورځ دي نـــه کومـــه لمـــره! رڼـــاڼه پره لـــرم
زۀ بـه سـتالاره دلتــه پـس لــه مــا ځيګره ګــورم

نـۀ غـوارم زۀ، چـې ښائـسته خوبونـه بيـا ووينـم
ځکــه خوځــان دښکلوســتر ګو لــه اثــره ګــورم

پــه دغــه ورا نــې دنياباندي بـا چـهـې نـه کـوم
ځکـــه خوســـر زۀ دهُمـــا لـــه هـــروَزره ګـــورم

کوټه
۱۴جنوري ۲۰۰۳ء



(دګل شاه خوستي نذر)

دا خوشحالي، خندا به هم تېره شي
دغه د غم سزا به هم تېره شي

له او ښکو ډکه د هجران دغه شپه
که خدائ کول، تنها به هم تېره شي

مه کړه ظلمونه په خوارانو باندي
د دا تصویر ښکلا به هم تېره شي

ما د خپل زړهٔ څراغ په وینه بل کړو
و مي کړئ خیال، رڼا به هم تېره شي

لــه غمــه ډکــه دا بــاقي زنــدګي
کـه تېرېـده، بې تـا بـه هـم تېـره شـي

زمـا پـه سـاده زړګـي څـپـه سـتـا دغـم
” تېره شوه نن سبا به هم تېره شي“

آخــري شــپـه د تبــسّم دژونــدون
اوس پـه ژړاژړا بــه هــم تېــره شــي

بورے
۱۴ستمبر۱۹۹۰ء



بې سترګو خلک يُو ،وخپل نظر ته نه رسېږو
اسمان ته لاړو خودمزکي سر ته نه رسېږو

مورډ رشتو په لارمزل کوؤ له عمره څخه
روان له سترګو شو ،بياهم ځيګر ته نه رسېږو

تتي ډيوې په لاس کي واخلو ،ټوله شپه تکل کړو
په رڼاګانو يُومين خولمر ته نه رسېږو

ته ښه بې غمه خپل غمونه زموږوزړو ته راوړه
دکائِنات رنګه وسيع يُو ،سر ته نه رسېږو

څوک به موغم وخوري،ترڃابه موحال ورسېږي
په ځان کي اوسو ،ځکه لراوبر ته نه رسېږو

موږچي غوټۍ وکړو ،ږلۍ راباندي واورېږي
بدبختـه درختـي يُو ،ترپايه بر ته نه رسېږو

کوټه
ستمبر۱۹۹۹ء



غرونــــه کـــه هــر څوورســــېږي ترفلَکــــه پـــوري
خوبُنيادونــه يــې لــه عمــره دي پــه مځکــه پــوري

ځلــه دي زۀ دخپــل ښائــست لــه جنــت وايــستمه
ماپـــه غـــنم بانـــدي وه کړې، کلــه څکــه پـــوري

مــوږېې ساتلي همېشه تــش پــه خوبونــوکي يُــو
کلـــه بـــه ورســـېږو موږ.تربختـه ورکـــه پـــوري

راځـــئ پخپلـــه ومنـــزل تـــه خپلـــه لاروتـــاکو
خبربـــه ورکـــه شـــي کـــه ولاړه ترملکـــه پـــوري

الـــوتي يُو، پريـــوځ ګـــام لا لـــه خـــلا پاتـــه يُـــو
تراوســـه پـــوري لا ترلـــي يُوپـــه مځکـــه پـــوري

ترسپوږمۍ سپيني ځلي دي هم زما وجود روڼ نه کړلو
ما درڼا پــه نيــت پــه ځــان کــړه اوربلکــه پــوري

هرچا ترخپـــل وســـه پـــښتوژبه پـــرمخ وړې ده
لـــه تبـــسّمه بيا ترســـتر خوشـــحال ختټکـــه پـــوري

کوټه
۰٤اګست ۲۰۰۱ء



لاهغسي دے ویران له ډېره وخته
ودان نه شودا ،مکان له ډېره وخته

هره پانه زۀ لیکمه لاتراوسه
ورکوم یوامتحان له ډېره وخته

بیاهم خپل منزل ته نه دے رسېدلے
یوکاروان چي دےروان له ډېره وخته

زۀ به تاله خوشحالي لټوم څنګه
له ماخواره ورک دے ځان له ډېره وخته

دغه څه رنګه دُنیاده، نۀ پوهېږم
پکي نۀ ښکاري انسان له ډېره وخته

چې یونوے لمر دمینې شې را پورته
زۀ لرمه دا ارمان له ډېره وخته

د غمونو په وریځو تبسّمه!
له ما پټ دے شین اسمان له ډېره وخته

بورے
۲۹فروري ۱۹۹۲ء



له ځان سره سره ټول عمرخپل مکان ګرځوؤ
مځکه ترپښولاندي ساتو، په سراسمان ګرځوؤ

موږله دننه تنهائي څخه وېرېږوځکه
له ځان سره په څنګ کي دشت اوبیابان ګرځوؤ

ستاعبادت ته فراغت نه شو موندلے خدایه!
موږپه سینوکي، په لېموکي خپل جانان ګرځوؤ

په څه بانه به درته وژاړو، ساه تنګي شولو
موږپه لېموکي له عمروعمروباران ګرځوؤ

موږدښکلا په کاروبارکي رعایت نه کوؤ
سترګي په پورکي نیسو، زړونه په تاوان ګرځوؤ

په دې نیلام کي به مو بیه تبسّمه! څه وي
لکه یوسف په بازارونوباندي ځان ګرځوؤ

کوټه
۲۷مارچ۲۰۰۲ء



څلــه کــوې دړدمنــه څلــه کــوې
ګیلــې لــه ماغمجنــه څلــه کــوې

چې دراتلـوېې هـیڅ اُمیدنـه لـرې
دداسې وخت غوښـتنه څلـه کـوې

څه نیمګړتیاوي به ضروروي، منم
تـﺉ مـې یَـومخ غندنـه څلـه کـوې

چې یې ظلمونه کول،خاؤري شولو
تــه دهغــو پوښــتنه څلــه کــوې

وماتــه وائــې دلارورکـو پـه بـاب
دوئ تــه دلارښــودنه څلــه کــوې

تاتــه پکارد ےدظـالم مــخ نیــوے
تــهٔ ددشــمن ســتاینه څلــه کــوې

دتبـــسّم پـــه دې غمګینـــه څهـــره
دخوشـــحالۍ کتنـــه څلـــه کـــوې

بورے
۳۱مارچ ۱۹۹۲



ځله ناکام په هره لار یُودواړه
ترڅو به یاره! داسې خوار یُودواړه

ژوند په تیارو کې تېرؤو موږ ځله؟
په انتظار د کوم سهار یُودواړه

ژونده! په موږ کې څه خامي پاته ده
موږ د عظیم فنکار شهکار یُودواړه

هیڅوک موهم خوشحاله نه ولیدو
موږ ګرځېدلي ښار په ښار یُودواړه

ضمیره! مااوتابه سپینه کوؤ
یا خوبه یُو یا به په دار یُودواړه

د تبسّم قلمه ! حق چې لیکې
ځکه ملګري دهر خوار یُودواړه

بورے

۲۳مارچ ۱۹۹۲ء

○

نــه بــه د رځــم پــه د غــه لار ګر ســـره*
پــرې بــه ږدم، ســتا کلــې او ښار ګر ســره

ستا د را تلو اُمید و ســـــــــــترې کړمه
نـــه بـــه کـــوم نور انتظار ګر ســـــره

دا توري شپې څو مره اوږدې شوې ربّه!
لـــه مـــوږه هېر شو لو سهار ګر ســـــره

لــه خپــل مقــصده بــه زۀ نــه اوړمــه
را تهـــالوې کـــه مـــې پـــه دار ګر ســـره

چـــې د بـــې وســـوژړانه ورر ســـې
پـــرې بـــه ږدم زۀ هغـــه دربار ګر ســـره

يزيـــد يت بـــه بيـــا هم وَنـــه مـــنم
که مي سرپرې کړي په وارواړ ګرسره

ماتبــسّم بــه تيــارې ثــه کــولې
خونــه رائــي دلتــه سهارګرســـره

بورے
۱۰جون ۱۹۹۲ء

* ګرسره - هډو ،بالکل



زموږ له سینو څخه، زموږ زړونه، ښکلې غل و باسي
موږ چې ور رسو ، دوئ له کلي څخه پل و باسي

موږ چې ګمان پر ې دلمرخویه کړو ، هم هغه خلک
تیارې را پرېږدي، څراغونه ټوله بل و باسي

بیابه کسات دهریودړد ، . له هرازغي اخلمه
یووارکه څوک زموږ له مابینه څخه ګل وباسي

شاید چې موږ له خپل کاروانه بېلوي، ځکه خو
مخ ته روان خلک هر ځلې دمزل و باسي

چې کله کله مخامخ شي تبسّم وغم ته
پرېږدي راوبولي وزړۀ ته، ټوله خپل و باسي

کوټه
۱۲جون ۲۰۰۲ء



چې ښائست ګورې نو سپوږمۍ هم له جانان سره
ږدي
عجبه خلګ دي چې مځکه له اسمان سره ږدي

ماچې دلمرپل راا خيستے دے، بس دا ګورمه
چې کوم ظالم دلمرړنادشپې له ځان سره ږدي

چې يې کړوليري موږله خپلو، په فتوؤد کفر
اوس هغه خلګ باچهي له خپل ايمان سره ږدي

خپل د بوالونه هره شپه له ځان سره ويدۀ کړم
خدائ خبرڅوک يې هرسهارد بل مکان سره
ږدي

څوک به آخر سره يوځائ کړي دا خوارۀ وګړي
ديوکېدوشرط چې يې خلګ له کاروان سره ږدي

وددرېــده د ســـپرلي ربلــۀ تبــسّمه پــه مــوږ
وائي چې سږبه خپل ګلونه له خزان سره وړدي

کوټه
۰۷ اپریل ۲۰۰۳ء

# یولسم ستمبر ـ په یورپ کي

ماته په دې ورځ دلته
خپل ځان محفوظ نه ښکاري
ولي چي یَو خو مسلمان یمه زهٔ
اوبل افغان یمه زهٔ
بیا په ځواني کي هم یم
ځکه په داسي حال کي
دهرسپین پوستي
چي په ما کله نظر ولګي
که څه هم کرکه یې په سترګو کي
زهٔ نه وینمه
خوزهٔ په ځان کي شم څه غلے غوندي
په خپل ګریوان کي لړ په ځیروګورم
ځان ته په ځیروګورم
چرته خوزهٔ ترهه ګر نه ښکاریږم؟

تیورن ـ اټلي
۱۱ ستمبر ۲۰۰۳ء

# ګلوبلائزېشن

وائي دنيا ده اوس د کلي په شان
هريو هيواد د دلته د کورغوندي دے
هريو وګړے د بل وروړغوندي دے
خوزۀ ربښتيا که درته ووايمه
بې شکه دې کلي کې هرڅه ډېر دي
خو د خپلوي چرته درک نه ښکاري
د ميني هم څه سلسله نه وينم
د نړيوالو په دې لوئ کلي کې
پېژند ګلوي د هرچا ګډه وډه
هريو ړغېړي اوس په بله ژبه
هيڅوک حال نه لري په خپل ځنګلوري
بې شکه پراخ دي خلوروا ړه لوري

ټيورن ـ اټلي
۲۲ ستمبر ۲۰۰۳ء

# و یورپ ته یوهٔ وینا

ستا پرمختګ ته زهٔ اریان نه یمه
ستا ترقۍ ته پرېشان نه یمه
نه وارخطا دي بازارونو ته یم
نه چُرتو وړے دي وغټو بلډنګونو ته یم
نه دي خوشحاله په دې پراخو سړکونو یمه
نه له ماځان ورک
ستا په ښکلو رنګینیو کي دے
ولي چي زهٔ په حقیقت خبریم
ستا د پنځه سوه کلونو وړاندي
په ذهانت او په محنت خبریم
تا په دا خپل لوئ ذهانت او محنت
د افریقه غرونه لاولوټلو
په دې دنیا دي قیامتونه جوړ کړو
په جنوبي امریکا یانو باندي
د ایشیا یو کونج نه پرېښوؤ
زر دي لوټلو، په دولت پسې وې
ځکه خوزهٔ درته په ډاګه وایم

تاترقي زموږپه سر کړې ده
دتاريخ پاڼې دي له ظلمه ډکې
تاباچهې زموږپه سرکړې ده
ځکه خوستاله سرکونوڅخه
دافريقې دوينوبوئ راوزي
ستاله دې غټوبلډنګونوڅخه
دجنوبي امريکايانو
اسوېلۍ راوزي
ستاله رنګينوبازارونوڅخه
داېشياکرېژې ،سلګۍ راوزي

نيس ـ فرانس
۰٤اکتوبر۲۰۰۳ء

# په مځکه جنت

ماخو جنت کله
په خوب لاهم ليدلے نه دے
نو بيا په دې باندې ښه نه يم خبر
چې هلته څه دي او ښائست يې څه دے؟
هلته دي غرونه که ښائسته رغونه؟
يا بيا تک شنۀ سمندرونه؟
که د شاتو او شودو رودونه؟
نه يم خبر چې جنت څنګه ځاى دے؟
ولې چې زۀ په دغه مځکه باندې
څه د جنت رنګه يو ځائ وينمه
دلته له کانړو هم دي بوټي وَتي
خوره ده شنه شنېزه په غرونو باندې
دلته اسمان دے

څه راکښته غوندي،
په سمندرکي خپل شین رنګ پاشلے
دلته یوې خواته خورهورسمندر
وبلي خواته جګ،اوچت،لوی غرونه
په میان کې ګرځي
یوڅوزماغوندي ساده انسانان
او بې شماره حُوري

مونټې کارلو ـ مناکو
۰۵اکتوبر۲۰۰۳ء

# ملګري ملتونه

مائیک* چي له ډانس فلوره راستون شو
زما په څنګ کي په چوکۍ کښېناستو
له خپله جېبه يې ټشو پېپر راوايستو
د خپل تندي خوله يې وچه کړه پرې
يو سوړ له درد ډک اسوېلے يې و کړو
بيا يې وماته و کتل، ګويان شو
"زما فلسطين له تورو بمونو ډک دے
هره کوڅه مي له بارودو ډکه
هره وياله مي له سروو وينو ډکه
زندګي هلته ده ارزانه غوندي
خو دلته مونږ په ټنګ ټکور کي لمانځو
ورځ د ملګرو ملتونو نن بيا
چي هره ورځ دامن غونډي کوي
خبره کړي د مظلومانو د حق

چار تېر لري د انسانانو د حق
خوېې عمل چرته هم نه ښکاريږي"
د مائيک آواز شو ژړغونې غوندي
اوښکې ددۀ په ښو وبريښېدې
هم په هغه ګهړۍ رنګينه رڼا
زياته شوه وپړقېده
د موسيقي ږغ هم څه نور پورته شو
د مائيک ژړغونې ږغ چانۀ واورېدو
ددۀو اوښکو ته چا نۀ وکتل
هر يو مدهوشه په نڅا اخته ؤ
"عظيمه" ورځ يې د تاريخ لمانځله
زۀ د ملګرو ملتونو ودې دوۀ څهروته
ددې خبرو او عمل تضاد ته
فکرونو يوړمه له ځانه ليري

ټيورن - اټلي
۲٤ اکتوبر ۲۰۰۳ء

*مائيک - په اټلي کې زما ملګرې چې د فلسطين اوسېدونکې ؤ

# په اتلې کې د څه وخت تېرولو پس
# يَو نظميه تأثر

ما چې په کومه ورځ
په دې خاوره قدم ايښے دے
تر اوسه پورې له دې خاورې سره
هيڅ اُنسيت مې پېدا شوے نه دے
خپلوی مې هيڅ محسوسه کړې نه ده
مينه مې هم چرته موندلې نه ده

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

زۀ خووګړے يم د هغه خاؤرې
چرته چې مينه بې حسابه کېږي
هرڅه پېئلې د رشتو په تار دي
خپلوي بې کچه د خپلوانو ډېره
مرکز د مينې چې خپل مورو پلار دي

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

خو دلته زۀ ټینګي رشتې نه وینم
له میني ډکي فرشتې نه وینم
دلته سپین سري مېندي وینمه
ویجاړي غوندي
دلته پلرونه هم بې وسه وینم
زویان اولُوڼي یې بد مستي وینم
چې نه دموراونه دپلارپه خیال دي
ځکه خو یو تربله دوئ بدحال دي

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

زۀ دادمیني مرکز دلته
ډېرکمزوره وینم
ماچې کتلي دي په ځیر
هرځل ددوئ سترګوکي
زۀ بې وسي، ناهیله ورځ او تنهائي وېنمه
زۀ یې په سترګوکي ارمان ډېردخپلوي وینمه
تنده دمیني، خواخوږي وینمه

- - - - - - - - - - - - - - - - - - - -

دا ځنګه خاوره ده، ګلونه دخپلوي نه لري

ثنګه بيا ځان زۀ په دا خاوره ګڼ کړم
چې د دې خاورې خپل وګړي لا د ځان د پاره
طلب د مينې کوي،
خپله خپلوي ته محتاج
ځکه خوزۀ لا اجنبي يم دلته
تر او سه پورې له دې خاورې سره
هيڅ اُنسيت مې پېدا شوے نه دے

روم۔ اټلي
۱۴نومبر۲۰۰۳ء

# ښيښنه څهره

هغه څهره
چي به وه تل په تصوّر کي زما
هغه څهره
چي په لېمو کي به مي ګرځوله
هغه څهره
چي ما په خپل زړۀ کي ساتلې وله
و ماته ناست دا مخامخ فنکار نن
د خپل ښائسته هُنر له لاري څخه
هغه څهره
راته تخليق کړله نن
له ښائستې، صفا او سپيني ښيښې

(په اټلي کي د وېنس ښار سره نزدې
په يوټاپو مورانو کي، چرته چي
ښيښنه ګري کېږي)
۱۲اکتوبر۲۰۰۳ء

# قدرِمشترک

وائي چي نړۍ په دوؤبرخو وېشلې ده
يوۀ شمالي اوبله جنوبي نړۍ
هم په دې تقسيم کي
وشمال ته اوله نړۍ وائي
اوجنوب دريمه نړۍ ګڼل کېږي
ولي چي شمال شتمن دے
اوجنوب نېستمن دے
خودشمال دشتمني اودجنوب دنېستي
داتفريق هرځائ شته
هم په شمالي اوهم په جنوبي نړۍ کي
ځکه خوزۀ نن په شتمن شمال کي
يوۀ پرنېستمن جنوب هم وينم
ددې يوۀ هيواد
شمال خوبېخي زيات شتمن دے
هم ددغه هيواد

جنوب د برزیات نبستمن دے
زۀ چي د جنوبي نړۍ وګړےیم
د شمال په دې جنوب کي
اجنبي نه ښکارم
ولي چي زما په جنوب
او دې جنوب کي
د نبستۍ قدر مشترک دے

نبپلز - اټلي
۱۲ نومبر ۲۰۰۳ء

## *The Dream Merchants*

(دانګرېزي دیَو نظم ترتأثرلاندي، په یوداسي کېفیت کي چي زۀ یې هم یَو برخه وم)

دپنځه ستوروردرجې هوټل ته
ددې هیوادله هریوکونجه څخه
په الوتکوکي راورسېدو
یوځوخواخوږي او زړۀ سوانده خلک
په دې سارۀ هال کي چي غونډشي سره
دهریوه مخ ته په مېزوي پراته
کمپیوټرونه اوموبائل فونونه
پرمخامخ لویه پرده باندي دوئ
وړاندي کوي رنګین رنګین ګرافونه
دچق چقواودخندا په شورکي
کړي په غربت باندي اوږده بحثونه

\- - - - - - - - - - - - - - - - - -

چي دډوډۍ پرمېزراغونډشي سره
غابونه ډک کړي له رنګ رنګ خوړَکو
په ډلوډلوکي ولاړوي سره
خپلوخبروته دوام ورکوي

هره ګوله چې يې ترحلق تېرېږي
ذکرد تهرد ماشومانو کوي
دوږو تږو غريبانو کوي
چې د پېپسي غوړپ يې ترحلق تېرېږي
دبوري تنده يادوي ورسره
لاس چې وروړي و رنګارنګ مېوؤته
درپدري بيادخاران يادوي
محرومه ورځ دکوهستان يادوي

---

په دې سرۀ دوبې په سړۀکوټۀ کې
هريوچې پرېوځي له ډک نسه سره
خاندي دځان له هم نفسه سره
بياله خپل ځانه سره وږغېږي
"څومره خوبونه مي نن خړڅ کړودبل
ډېرارمانونه مي نن خرڅ کړودبل
دترقۍ لوئ سوداګريمه زۀ
دغريبۍ لوئ کاريګر يمه زۀ"
بياسترګي پټې کړي خوبونه ويني
او په خوبونوکي نوټونه ويني

اسلام آباد
۲۸اګست ۲۰۰٤ء

# ګلېډيئېټر*

بس د يوۀ اعزاز ګټلو په نيت
د څه دولت راغونډولو په نيت
د خپل طاقت ښکاره کولو په نيت
د باچهانو سات تېري د پاره
د څو آقاؤ د هوس له وجې
څومره مريانو دلته سرونه بائيلو
څومره سرې ويني دلته خاوري شولې
څومره خوبونو دلته ساورکړله

په روم ـ اټلي کي کولوسيوم ته نږدې
۱۵نومبر ۲۰۰۳ء

*په رومن سلطنت کي به په کولوسيوم کي باچهانو او اميرانو مريان سره جنګول، جنګ ګټونکي مريي ته به د ګلېډيئېټر خطاب ورکول کېدو.



مینه که کوي، قدم په پام را پسي مه اخله
زما لاره که چپه ده نو ګام را پسي مه اخله

لیري شوم له تاڅه مجبوریاني مو په میان کې وې
نوم که مې اوس اخلې نو الزام را پسي مه اخله

ما خو سپوږمۍ ښکېښېنووهٔ، دلمرډیوهٔ مې بله کړه
اوس لا سهار ګاه ده، تهٔ ماښام را پسي مه اخله

زهٔ شپېلۍ وَ همه په کوڅه کې دي تېرېږمه
خلک دي، تپې، تهٔ له خپل بام را پسي مه اخله

زهٔ په يو ښائست پسې اسمان ته رسېدلے يم
نه درځم په لاس، د زلفو دام را پسې مه اخله

ځمه نه دربېږم، له رقيبه خپل بدل اخلم
ته رُوئ د قرآن، دلوئ کلام را پسې مه اخله

تهٔ که تبسّمه! سازول غواړې د نيانوې
خپل ځان کړه تخليق، خيالونه خام را پسې مه اخله

کوټه
۲۹مارچ ۲۰۰٤ء



رڼامي چالوټ کړه او څوک مي په زوال خبر دے
د بد بختيو په تيارو مي بومشال خبر دے

له چا به پټ شي چي د لمرغوندي ځلېږي همېش
د لته هريو زُماد يار په خد وخال خبر دے

او س به وتاته څه سندري د سپرلي وَوايم
زۀ خو ازغي لا نه لرم، په دې ډوکال خبر دے

مورچي لوظونه له يوبل سره کول د ميني
په دې يو خدائ او يو د استاد زني خال خبر دے

لـه مـا دژونـدد زېروبم قـصې تـۀ ځلـه پوښـتې
وخـت خوزُمادهريودړد پـه سُـراوتا ل خبـرد ے

موږپـــښتانۀ دي يـــودلارخنډتراوســه پـــوري
ستاپه مغل سلوک دوخت هريوخوشحا ل خبرد ے

تبـــسّم ســـتاواړه نازونـــه پـــه خنداځکـــه وړي
له فراق ځان ګوري، په خوندچي دوصا ل خبرد ے

کوټه
۲۸مارچ۲۰۰٤ء



ترچنارونو مي لړکم ايښې دے
قدمي له ځانه سره سم ايښې دے

په سهارګاه کې به ګلونه ګورم
ما په بڼو کې يَو شبنم ايښې دے

پلونه مې وړي دي له ځانه سره
ما که په دې خاؤره قدم ايښې دے

د الف رنګه زۀ خود سره نه يم
سرمي دواؤ په شاني خم ايښې دے

پرهرجـــوړېږي، دړدېې لازيـــاتېږي
مــاچي هرکلــه پــرې ملهــم ا يــښې دے

خوشـحالي ولـي ليـري تـښتي دژونـد
بنـستۍ بـې ګـوره چـاپرغم ا يــښې دے

ترخپــل زړګــي پــوري زۀ وشــرنګېږم
ځـان مـي دشـنوبنګړورَقم* ا يــښې دے

کوټه
۲۳اپريل ۲۰۰٤ء

*غوندي، رنګه، ډول



نه په یو رنګ کي اوسم، نه خپله څهره بدلوم
څنګه انسان یم چي له وخت سره جُثه بدلوم

د حُسین رنګه د هر ظلم مخ نیوے کومه
د یزید غوندي کربلا په هدیره بدلوم

زما په سینه کي کله کله د مور زړهٔ درزیږي
داسي وخت هم راشي،اولادزهٔ په پیسه بدلوم

پخپله روے شم اوهره شپه خپل ځان وېروم
ځکه خوهره ورځ سهارخپله کمره بدلوم

رښاهم غوارم، خوتیارې مې هم پرځان پیرزوشي
څه بدبختي مي ده چي لمر زۀ په ډیوه بدلوم

په ملنګي کي کله کله عرش ته ور سپړم
کله قارون سم خپل هرڅه په خزانه بدلوم

په یوۀ شکل کي آدم اوابلیس دوارۀ ښکارم
مخ بدلولے نشم، ځکه آئینه بدلوم

په حفاظت کي هم زۀ ځان سلامت نه ګڼمه
دکورګَودي له منجاري څه په چاره بدلوم

ځان چي باچاکړم نوله خلګو څخه لیري شمه
کله په خلګوکي دخپل حق هم ناره بدلوم

بدرجمالي ته نکلونه د توردپب کومه
وآدم خان ته ددُرخوبیا زۀ قصه بدلوم

څه وخت د ګل غوندي تازه او ښائسته ایسېږم
ځان بیا ترډېره له خزان سره سره بدلوم

کورته چي ننوځم، له ځانه شم د باندي پاته
چي وځم بیا د کلا هره دروازه بدلوم

چي زۀ آذرشمه، خدایان جوړکړم په خپلو لاسو
چي ابراهیم شم، بتخانه بیا په کعبه بدلوم

په ښائستوټپو کي زماله وجي خوند پېدا دے
هغه هم زۀ یمه چي غاړي په نوحه بدلوم

په یو وجود کي په زرګاؤ تضادونه لرم
څنګه انسان یم چي له وخت سره جُثه بدلوم

کوټه
۰۸جولائي ۲۰۰٤ء



ما پاللې د دنیا هم دښمني وه
له خپل ځانه سره زما هم دښمني وه

په یوه تړون دوه رنګه وو تړلي
چي یاري وه زما او ستا ، هم دښمني وه

په سپرلي کي هم خزان ته ور نږدې شوۀ
چي له ګل سره د چا هم دښمني وه

ما به څنګه مینه هر ځای خوروله
را پرې ایښې چي بابا هم دښمني وه

چي به کومه شپه وصال له ورتلمه
له سپوږمۍ سره به زما هم دښمني وه

مـا هغـه وخـت هـم ډيـوې بلـي سـاتلې
يــادول چـــي د رڼـــا هـــم دښمنـــي وه

ما د يار نوم له خپل ځان سره نـه اخستو
تبـــسمه! هلتـــه دا هـــم دښمنـــي وه

بورے
۱۸ جون ۲۰۰۵ء



شــپه ده پـر څـه خلګـو لاتـر اوســه هـم
هره ورځ را خېژي په هر کـور کـي لمر

چـا چـي بـه ډيـوې راوړلـې هـره شــپه
نــن ئـې رانــه يوړلـو پـه پـور کـي لمـر

مـورې تـه پـه هـر حـال کـي رسـوی رڼـا
خپله ټولـه ورځ اوسـي پـه اور کـي لمر

راســـئ پـــه تيـــارو کـــي لار در وښـــيم
مـا سـاتلې دےد سـترګو تـور کـي لمـر

يو واري په ځان کي کړه خوره رڼا
ښکاري به و تاته په هر لور کي لمر

پېښور
۰۲ جولائي ۲۰۰۵ء



ړوند دي شومه په ديدن پسي، نور غواړم
ځکه اوس له بله سترګي په پور غواړم

ستا ښائست د ځان کړم څنګه، نه پوهېږم
تا په ځان کي، زه د ځان رنګه خور غواړم

زما نعرې تر باچهانو نه رسېږي
اوس به خپل حق له هر چانه، په زور غواړم

زه وړه نړۍ د مينې سازومه
پېښور، کوټه، کابل، نه لاهور غواړم

د بهر لمبې ما کله سوځې نه شي
زه پناه د ځان دننه له اور غواړم

زه لــــه زيــــارو كاروبــــار نــــه جوړومــــه
پــه صــله كــي و بچيــانو تــه كــور غــواړم

تبـــسم بـــه پـــه امـــان لـــه هـــر آفـــت يـــم
را رســـېږی بـــه، دعـــاوي د مـــور غـــواړم

پېښور
۲۵ مئ ۲۰۰۵ء



په څو شېبو مې تر اسمانه يوسي
خيال چې دي راشي، ما له ځانه يوسي

يم په صحرا کې د پل غونډي پاته
څوك به مې بيا تر خپل کاروانه يوسي

روې مې نه پرېږدي، آزاد نه يمه
خلك دي ما له دې مکانه يوسي

ډېر دي ساده، د ميني کلي خلك
هره خبره زر تر خانه يوسي

زما د سپرلي ګلان تر زړه وختل
څوك به ازغي سږ له خزانه يوسي

قاصد د وصل خبر نه راوړي، خو

زېـــرے د هجـــر تـــر جانانـــه یوســـي

تـــه چـــي خبرېـــږي، تبـــسم شـــعرونه
ســتا د ښائـسـت لـه ویـړ دېوانـه یوسـي

بورے
۱۲ دسمبر ۲۰۰۵ء

## د شاعر پېژندګلوي


نوم: محمد عارف
قلمي نوم: عارف تبسم
د پلار نوم: حاجي شیر افضل
ټاټوبۍ: بورے، لورالائي
تعلیم: ایم- اې انګرېزي ادبیات
ایم- اې بین الاقوامي تعلقات
درک: مکان 246- رحیم کالوني جبل روډ
هده – کوټه، سهېلي پښتونخوا
فون: 0333 - 7804824
اي مېل: ariftabassum@yahoo.com


چاپ کتابونه

۱- ګلوبلائزېشن اور مادري زبانين (ترتیب)
۲-آزادی کی پهلی کرن (ترجمه)
۳- دلمرپل (هم دا مجموعه)

ناچاپ کتابونه

۱- ادب، ژبه او ګلوبلائزېشن (د پښتو مقالو مجموعه)
۲- جب کارپورېشنوں کی حکومت هوګي
(د اردو مقالو مجموعه)